| ۴ – فالمعلِّمُ<br>زده کوونکي د نهم تمرین کار کوي<br>۱ – ثم<br>۲ – و. | محترم ښوونکی بیا هم نهم تمرین د زده کوونکو په واسطه پر تخته لیکي او تش ځایونه پرې ډکوي .<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې د کتاب ( الواجب المنزلي ) په خپلو کتابچو کې ولیکي او هره کلمه دې په جملو کې وکاروي. د بیلګې په توګه:<br>شارک عمار في غزوة بدر. | ۵ دقیقي |
|---|---|---|

**لوست: دریم ( لومړی برخه ).**

**سر لیک: اصدقائي.**

**مخ: ۱۱.**

**وخت: ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت ).**

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

۱ –لوست ولولي او د قصې په مفهوم پوره پوه شي.

۲ –د ( نفي او نهې ) تر منځ په فرق پوه شي.

۳ –د ( نفي او نهي ) د مضارع فعل سره په جملو کې صحیح استعمال، او بیا یې په سمه توګه ولیکي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

کله چې موږ وغواړو چې مثبت مضارع فعل په منفي تبدیل کړو، اوهمداراز په نهې یې بدل کړو، باید د فعل نه مخکې (لا) راوړو چې.

( لا) نهې فعل مضارع ته جزم ورکوي، او مخاطب د کولو د فعل نه منعه کوي.

نهې: د نحوې په اصطلاح کې هغې غوښتنې ته ویل کیږي چې فاعل د سرته رسولو دفعل نه په کلکه منعه کوي.

د (لا) ناهیه مثالونه:

تأكلُ – لا تأكلْ. تكتبُ – لا تكتبْ. تدخلُ – لا تدخلْ. تذهبُ – لا تذهبْ.

نفې: په معنا د انکار، اود اثبات ضد دی، اومنفي هغه کلام ته ویل کیږي چې د (لا) نافیه څخه وروسته واقع وي.

د منفي فعل مثالونه:

يخرج: لا يخرجُ . يذهبُ: لا يذهبُ. يدخلُ: لا يدخلُ. يأكلُ: لا يأكلُ.

**نوي لغتونه:**

– نشیط ( فعال )

– مجتهد ( کوښښ کوونکي ).

– انفقُ ( مصرفوم ).

**درسي میتودونه:**

په انفرادې او ډله ییزه توګه پوښتنې او ځوابونه.

**درسي مرستندویه توکي:**

د لوست بهير:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، او د کورنۍ دندې د کتلو وروسته د تير درس ارزونه کوي:<br>– څوک کولای شي چې د ( انزل ) کلمه په جمله کې وکاروي.<br>محترم ښوونکی دې نوی لوست د عنوان پیدا کولو لپاره لاندې هڅوونکې پوښتنې وکړي.<br>– څوک ویلی شي چې دوستانو ته په عربي که څه وايې؟<br>او د ځوابونو وروسته د نوی لوست سر لیک چې (اصدقایې)<br>دی د تختې پر مخ لیکی او زده کوونکو ته لارښوونه کوي<br>چې خپل کتابونو ته ځیر شي. | |
| ۲۵ دقيقې | – محترم ښوونکی دې نوی لوست په مناسب آواز لولي او بیا زده کوونکو ته وایې چې نوی لوست په چوپتیا سره ولولي او وروسته د څو تنو زده کوونکو څخه غواړی چې د تختې مخې ته راشي او د لوست لاندې کلمې په تخته ولیکي ( اصدقائي – یکذبُ – یغضبُ – نشیط – مجتهد – یضیع – افضت – المصاریف – انفقُ )<br>او بیا دغه کلمې ( نشیط – مجتهد – او اُنفِقُ ) معنا کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په څو تنو زده کوونکو لولي او معنا کوي یې او ښوونکی ورسره مرسته کوي او بیا د لوست لومړی تمرین د سوال او ځواب په ډول په زده کوونکو باندې عملې کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست دویم تمرین په دوه دوه زده کوونکو د سوال او ځواب په ځیر عملي کوي، او بیا دریم تمرین په خپله په تخته لیکي او د زده کوونکو څخه غواړي چې په وار تختې ته راشي او تش ځایونه د نفي (لا) او نهي (لا) په واسطه ډک کړي او ښوونکی ورسره مرسته کوي. | د لومړي تمرین حل<br>۱ – لاحمدَ ثلاثة اصدقاء.<br>۲ – أراد یوسفُ ان یترکَ المدرسةَ لیعملَ.<br>۳ – یا بنيَّ لا تترکِ المدرسةَ.<br>۴ – ینجح في الامتحان بامتیاز.<br><br>د دریم تمرین حل<br>لا الناهیة: لا تکذب.<br>لا النافیة: لا اکتبُ. |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱ – څوک د لوست آخری جملی ویلی شي؟<br>۲ – څوک نشیط او انفق معنا کولای شي ؟<br>۳ – څوک د لوست معنا لوستلی شي؟ | |
| ۵ دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکې د لوست څلورم تمرین چې د تشو ځایونو ډکول دې په لا الناهیة سره باید په خپلو کتابچو کې ولیکي. د بیلگې په توگه ( لا تجلس في وسط الطریق ). | |

**لوست: دریم ( دویمه برخه ).**

**سر لیک:** اصدقائي.

**مخ:** ۱۴ – ۱٦.

**وخت:** ۴۵ دقیقي ( یو درسی ساعت )

**موخې:**

۱ –ماضي فعلونه د متصلو ضمایرو سره صحیح زده کړي .

۲ –د تمرینونو تش ځایونه په مناسبو فعلونو سره ډک کړي او ( اَن او لَا ) حرفونه سم ولیکي.

**نوي لُغتونه:**

۱ – لا تُصاحب ( ملګرتیا مه کوه ) ۲ – رفضَت ( و یې نه مانه ) ۳ – حزن ( غمجن شو ).

**درسي میتودونه:** پوښتې او ځوابونه – یو کسیزه او د مسابقې په ډول.

**درسي مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر**

| وخت | د ښوونکې فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، او د کورنۍ دندی له کتلو وروسته د تیر درس ارزونه کوي | |
| ۳۵ دقیقي | – څوک د دغې کلمې معنا ویلای شي ( تجلس – تقف ). محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د کتاب ( ۱۴ ) مخ ته په ځیر سره وګوري او پنځم تمرین په چوپتیا سره ولولي او بیا ماضي فعلونه د متصل ضمایرو سره یو ځای په تخته ولیکي البته هر زده کوونکی په خپل وار سره راځي او د ښوونکی په مرسته ځواب لیکي .<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین چې د (اَن) او لا یو ځای کیدو او وروسته بیا د جملو په تشو ځایونو کې استعمالول دي په زده کوونکو باندې عملي کار کوي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي د مسابقې لپاره په دوو ګروپونو ویشي او د لوست اووم تمرین چې مثبتې جملې په منفي جملو بدلوي او هر ګروپ چې ژر خلاص شو هغه د مسابقې ګټونکی دی. ښوونکی باید د ټولګي نظم ته پاملرنه وکړي.<br>– محترم ښوونکی اتم تمرین بیا هم په زده کوونکو باندې عملي کار کوي د ټولګي ټولو زده کوونکو ته پام کوي او هر یو ته د هغه د استعداد په اندازه کار ورکوي. | د پنځم تمرین حل<br>زده کوونکي ماضي فعلونه د متصل ضمیرونو سره لیکی:<br>۱ – اقترب – اقتربت – اقتربوا – اقتربن.<br>۲ – ابتعدن – ابتعدوا – ابتعدن.<br>۳ – امتحنت – امتحنوا – امتحن.<br>یجب الا تخرج عن الفصل<br>د اووم تمرین حل<br>زده کوونکي لیکي:<br>۲ – خالد لا یرسب في الامتحان.<br>د اتم تمرین حل<br>۲ – لا تتکلم بغیر الحق. |
| ۵ دقیقي | **کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی دې زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړې چې د ( لا ) ناهیه تر جملو لاندې کرښه وکاږي او جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي د بیلګې په توګه:<br>۱ – لا تخرج من الفصل الآن. | |

## لوست: څلورم ( لومړۍ برخه )

**سرلیک:** السفر لطلب العلم.

**مخ:** ۱۷ – ۱۸

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – لوست سم ولولي او د اسم فاعل مثالونه په جملو کې وښايي.

۲ – د سفر اسناد وپیژني.

۳ – د اسم فاعل صیغې په جملو کې استعمال کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

اسم فاعل: هغه کس اویا شی چې د کار کولو نسبت ورته کیږي، خو دا نسبت د کړنې ورته تل نه وي.

اسم فاعل: د ثلاثي فعل نه په وزن ( فاعل) راځي، لکه: کتبَ، یکتبُ (کاتب)، د کاتب کلمه په هغه کس باندې دلالت کوي چې لیکنه کوي، خو دانسبت ورته تل نه کیږي، بلکې د څه وخت لپاره ورته ویل کیږي چې لیکونکی دی.

ذاهب: هغه شخص ته ویل کیږي چې د هغه څخه د تللو کار توقع کیږي.

د ثلاثي وزن نه علاوه اسم فاعل د مضارع پر وزن راځي، چې د مضارع حرف حذف کیږي، پر ځای يې مضموم میم، او آخر حرف نه مخکې حرف ته کسره ورکول کیږي، لکه: اِجتهدَ، یَجْتَهِدُ، مُجْتَهِدٌ. أَحْسَنَ، یُحْسِنُ، مُحْسِنٌ. کَذَّبَ، یُکَذِّبُ، مُکَذِّبٌ.

**نوي لغتونه:**

۱ – قادم ( راتلونکی ) ۲ – الجامعة ( پوهنتون ) ۳ – المعهد ( انستیتیوت ).

**درسي میتودونه:** پوښتنې او ځوابونه په یو کسیزه او دوه کسیزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، پوښتنې، او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر درس ارزونه کوي لکه:<br>– څوک ( لا ناهیة ) د مضارع فعل سره لیکلی شي؟<br>د نوي لوست د عنوان پیدا کولو پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې کوي:<br>۱ – څوک کولای شي چې دغه جمله عربي ته ترجمه کړي (د علم د طلب لپاره سفر کول). | |
| ۲۵ دقیقې | – محترم ښوونکی دې د ترجمې نه وروسته د نوي لوست سر لیک چې (السفر لطلب العلم ) دې د تختې پر مخ ولیکي او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي تر څو کتابونو ته ځیر شي. بیا دې نوی لوست په مناسب آواز ولولي او زده کوونکو ته دې ووايي چې په چوپتیا سره خپل لوست | |

| وخت | فعالیتونه | یادښت |
|---|---|---|
| | ولولي او وروسته په وار وار سره د ټولګي مخې ته راځي او خپل لوست په مناسب اواز سره لولي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست سختې کلمې د ځان سره ولیکي او بیا هغه کلمې د معنا سره په تخته ولیکي او ښوونکی دې ورسره پوره مرسته وکړي او بیا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې نوی لوست د ښوونکي په واسطه خپل منځ کې د سوال او ځواب په ډول طرح کړي، یو زده کوونکی پوښتنه کوي او بل یې ځواب وایې.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین په څو تنو زده کوونکو لولي او معنا یې کوي او بیا له څو تنو نورو زده کوونکو څخه غواړی چې د سوالونو ځوابونه ووایې. او دویم تمرین هم په همدې ډول په زده وونکو عملي کوي، او ښوونکی ورسره مرسته کوي. | د لمړۍ تمرین حل<br>۱ – یرید حسن أن یسافر الی المملکة العربیة.<br>۲ – یرید حسن أن یدرس بجامعة ام القری.<br>۳ – طلب جواز السفر و تاشیرة الخروج.<br>۴ – تقلع الطائرة بعد عشرین دقیقة. |
| ۱۰ دقیقي | **ارزونه:**<br>– څوک کولای شي چې لوست سم ولولي؟<br>– څوک کولای شي دا سوال ځواب کړي ؟<br>اَین جواز سفرک؟<br>– څوک کولای شي لاندې کلمې معنا او په تخته یې ولیکي؟ قادم – الجامعة. | انا قادم من ایران. |
| ۵ دقیقي | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي د لوست دریم تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي د بیلګې په توګه: ( من أین أنت قادم ) | |

## لوست: څلورم ( دویمه برخه )

**سر لیک:** ( السفر لطلب العلم.

**مخ:** ۲۰ – ۲۲

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ –اسم فاعل په جملو کې سم استعمال کړي.

۲ –مضارع فعلونه د متصل ضمایرو سره یو ځای ګردان کړي.

نوی لغتونه:

ناجح ( بریالی ) تاشیرة الخروج (د وتلو ویزه )

**درسي میتودونه:**

پوښتنې او ځوابونه، په یو کسیزه او ډله ییزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکې فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام،احوال پوښتنې،او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر درس ارزونه کوي.<br>– څوک: (د أنت / إیران ) کلمې جملو کې استعمالولی شي؟ | د څلورم تمرین حل<br>زده کوونکي لیکی : |
| ۳۵ دقیقې | – محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوی چې د لوست څلورم تمرین چې د کتاب په شلم مخ کې دی ښه ځیر شي او په چوپتیا سره یې ولولي او بیا په وار سره یوه یوه کلمه په بشپړه توګه په جمله کې استعمال کړي هر تش ځای په مناسبه کلمه ډک او بیا هغه جمله په تخته ولیکي.<br>ښوونکی دی پوره مرسته وکړي.<br>– محترم ښوونکی له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او د لوست پنځم تمرین چې متصل ضمایر د فعل مضارع (مخاطب – متکلم) لپاره راځي په جملو کې استعمال کړی او په تخته یې ولیکي او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی دوه تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي او په هغوی باندې نوې لغتونه د معنا سره لیکي.<br>محترم ښوونکی د ټولګې زده کوونکي په دوو ګروپونو ویشي او هغوې ته لارښوونه کوي چې د لوست شپږم تمرین چې پوښتنې د ځوابونو سره د قلم د کرښې په واسطه وصل کیږي چې بیلګه یې په کتاب کې ذکر | ۱ – ذاهب – ۲: ناجح – ۳ قادم – ۴: کاتب. ۵ – راسبة.<br>د پنځم تمرین حل<br>زده کوونکي په تخته لیکي:<br>أنت تلتَحِقُ – أنت تلتحقِین، أنا التَحِقُ – نحنُ نَلتَحِقُ –<br>۲ – تدرسُ –تدرسینَ – ادرسُ، ندرسُ.<br>د شپږم تمرین حل<br>– إلی این انت مسافر؟<br>– أنا مسافر الی السعودیة<br>– أین جواز السفر؟<br>–أین تاشیرة الخروج.<br>– هذه تاشیرة الخروج. |

| | | |
|---|---|---|
| | شوی دي يو ځای کړی او بیا هغه ځوابونه ولولی او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرين چې د بې ترتيبه کلمو جوړول دي په زده کوونکو عملې کار کوي او مرسته ورسره کوي.<br><br>**کورنی دنده:**<br>محترم ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي د لوست ( الواجب المنزلي ) په خپلو کتابچو کې وليکي د مثال په ډول:<br>راسب – شارب – ناجح – جالس | **د اووم تمرين حل**<br>زده کوونکي د نا مرتبه کلمو څخه جملې جوړوي:<br>١ – إلى اين انت مسافر.<br>٢ – أين جواز سفرك.<br>٣ – أين تاشيرة الخروج.<br>٤ – تفضل إلى البوابة رقم ( ١٤ ) |
| ۵ دقيقي | | |

## لوست: پنځم ( لومړۍ برخه )

**سر لیک:** البيئةُ

**مخ:** ۲۳ – ۲۴

**وخت:** ۴۵ دقيقې ( يو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – لوست سم ولولي او د لغتونو معنا وليکي.

۲ – د خپل ځان، کور او ماحول په پاکوالي پوه شي.

۳ – ( مفعول لأجله ) په جملو کې وښايې.

د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:

مفعول لأجله: هغه مفعول ته ويل کيږي چې د خپل فعل وقوع لپاره علت وي، همداراز ورته مفعول معه هم ويل کيږي، لکه: قمتُ احتراماً لِمُعَلِّمِي. پدې جمله کې (احتراماً) مصدر اومفعول معه دی، چې د قيام سبب بيانوي.

مفعول لاجله په درې ډوله استعماليږي:

| | |
|---|---|
| ۱ – د الف اولام څخه پرته د مثال په توګه: | أسافرُ طلباً للعلم. |
| ۲ – د الف اولام سره: | أجلسُ بين الأصدقاء لِلْعِلْمِ. |
| ۳ – مضاف: | أنفق خشية الفقر. |

په لومړۍ جمله کې (طلباً) منصوب، په دويمه جمله کې (لِلْعِلْم) مجرور، به دريمه جمله کې (خشية) منصوب، يادې شوي کلمې ټولې مفعول لأجله واقع شوی دي.

مفعول لأجله د ( لِمَ ) په ځواب کې راځي، لکه وايي: لِمَ ضربتَ محموداً؟.

ځواب يې: ضربتُهُ تأديباً. تأديباً د فعل (ضربتُهُ) د وقوع علت بيانوي.

**نوي لغتونه:**

۱ – النفايات ( اضافي مواد ) ۲ – عديدة ( ډول ډول ) ۳ – الآبار ( څاګانې ) ۴ – التّلَوُّثُ (ککړتيا )

**درسي ميتودونه:** پوښتنې او ځوابونه – په انفرادي او دوه کسيزه توګه.

**د لوست مرستندويه توکي:**

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې او دکورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر درس ارزونه کوي.<br>– څوک د ( یقدم – یکتب – یسمع ) کلمو فاعل اسم ویلای شي؟<br>– د نوي لوست د سر لیک د پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې.<br>– څوک ویلی شي چې د اسلام دین د نظافت په اړه څه ویلي دي؟ | |
| ۲۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د ځوابونو وروسته د نوي لوست سر لیک چې ( البیئة ) دی د تختې پر مخ لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې نوی لوست په چوپتیا سره ولولي او سختې کلمې په کتابچو کې ولیکي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز لولي او بیا د څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې نوی لوست په سمه توګه ولولي البته مرستې ته اړتیا لري – وروسته د دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او نوي لغتونه د معنا سره ولیکي او بیا هغه معنا ولولي.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین په څو تنو زده کوونکو داسې عملي کوي چې سوال یې یو زده کوونکی او ځواب یې بل لولي او د لوستلو په وخت کې باید حرکتونه مراعت شي بیا د لوست دویم تمرین په څو تنو کمزورو زده کوونکو ولوستلای شي او هغوی سره دې پوره مرسته وشي چې دغه زده کوونکي جرأت پیدا کړي چې په نورو فعالیتونو کې هم برخه واخلي، البته د ښوونکي پوره مرستې ته اړتیا لیدل کیږي. | د لومړي تمرین حل:<br>۱ – اهتم الاسلام بنظافة البیئة<br>۲ – ان الله طیب یحبُ الطیب و النظیف .<br>۳ – علینا ان نهتم بنظافة البیئة حفاظا علی صحتنا. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>څوک کولای شي د لوست دری جملې په سمه توګه ولولي؟<br>– څوک کولی شي د ( الآبار او التلوث ) کلمو معنا پر تخته ولیکي؟<br>– څوک د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وینا چې د نظافت په اړه یې ویلې ده ویلای شي. | وقایة<br>نحافظ علی البیئة وقایة من التلوث |
| ۵ دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي باید د لوست شپږم تمرین چې د جملو جوړول دي په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

## لوست: پنځم ( دویمه برخه )

**سر لیک:** البیئةُ

**مخونه:** ۲۵ – ۲۷

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید :

۱ – ماضي او مضارع فعلونه په مصدر بدل کړي.

۲ – د همزه د لیکلو او د هغې د مخه ساکن الف زده کړي.

**نوې لغتونه:** البیئة (چاپیریال) تدعو (غواړي) علینا ( پر مونږ لازمه ده )

**درسي میتودونه:** پوښتنې او ځوابونه – په دوه کسیزه او یو کسیزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام احوال پوښتنې د کورنۍ دندی له کتلو وروسته دتیر درس ارزونه کوي<br>– څوک د کورنۍ دندې یوه جمله لوستلی شي؟ | |
| ۳۵ دقیقي | – محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست دریم تمرین ته ښه ځیر شي او هغه کلمې چې ترې لاندې کرښي دي ولولي وروسته بیا څلورم تمرین چې د ماضي او مضارع په فعلونو بدلول دي په زده کوونکو باندي په تخته عملي کوي او مرسته ورسره کوي .<br>– محترم ښوونکی باید دغه ټکي ته متوجه وي چې د ټولګې ټولو زده کوونکو ته په فعالیتونو کې برخه ورکړي، تر څو زده کوونکي فعاله شي او هر یو په خپل وار سره برخه واخلي.<br>– محترم ښوونکی د پنځم لوست تمرین په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو په وار راشي او هغه کلمه په ګوته کړي چې د همزې دمخه ساکنه وي او ښوونکی دي پوره مرسته وکړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرین چې د تشو ځایونو ډکول دي په زده کوونکو کار وکړي او هغه داسي چې هر زده کوونکی په خپل وار سره جمله لولي او تش ځایونه یې په مناسبو کلمو چې | د څلورم تمرین حل:<br>زده کوونکې په توره تخته لیکي:<br>قطع – یقطعُ – قطعاً – حرق – یحرقُ – حرقاً.<br><br>د اووم تمرین حل<br>زده کوونکي لیکي:<br>۱ – نحافظ – ۲ – نضع – ۳ – نزین ۴– نظافة. نهتم – اکبر.<br><br>د اتم تمرین حل<br>زده کوونکې جملې سره یو ځای کوي.<br>۱ – یجلس المصلون في المسجد |

| | | |
|---|---|---|
| | ورکړل شویدي ډکوي، بیا هم پوره مرستې ته اړتیا لیدل کیږي.<br>– محترم ښوونکی دې د لوست اتم تمرین چې د جملو یو ځای کول دي په زده کوونکو باندې کار وکړي او هغه داسې چې د لومړي قطار جملې دې په دویم قطار کې د مناسبو کلمو سره ونښلوي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي د لوست ( الواجب المنزلي ) چې د ژوند چاپیریال لپاره ( ٦ ) جملې لیکل دي په خپلو کتابچو کې ولیکي. | انتظاراً للصلاةِ.<br>٢ – نذهبُ الی المدرسة طلباً للعلم.<br>٣ – نقدم الخیرات ابتغاءَ مرضاةِ الله.<br>٤ – ازور عمي احتراماً له.<br>٥ – نحافظُ علی البیئةِ خوفاً من تلوثها. |
| ٥ دقیقي | | |

**لوست: شپږم - لومړۍ برخه.**

سرليک: كلمةُ المُدير

مخ: ۲۹

وخت: ۴۵ دقيقې ( يو درسي ساعت )

موخې:

۱ – زده كوونكى لوست سم ولولي او د فعل امر صيغي په لوست کې وپيژني.

۲ – زده كوونكى د مضارع فعلونو او د هغه د مذكر او مونث صيغي د امر په مفرد او جمع فعلونو كې ګردان كړای شي.

ښوونكي ته اضافي معلومات:

امر: حكم كولو ته وايي. اوپه اصطلاح کې: هغه لفظ ته ويل كيږي چې د مخاطب فاعل څخه يې د كولو غوښتنه كيږي، پرته لدې چې لام دې فعل سره مل وي، لكه: دَرَسَ، يَدْرُسُ، اُدْرُسْ. كَتَبَ، يَكْتُبُ، اُكْتُبْ. ذَهَبَ، يَذْهَبُ، اِذْهَبْ.

د امر فعل له مضارع فعل څخه جوړيږي، چې د مضارغ حرف حذف كيږي، پر ځای يي همزه راوړل كيږي، اوآخر يې ساكن كيږي.

– كله چې د مضارع فعل عين مضموم وي، همزه دامر مضمومه راځي، لكه: أَعْرَبَ، يُعْرِبُ، أَعْرَبَ. أَكْرَمَ، يُكْرِمُ، أَكْرِمْ.

– د دې نه علاوه د امر فعل همزه مكسوره راځي، لكه: ذَهَبَ، تَذْهَبُ، اِذْهَبْ. جَلَسَ، يَجْلِسُ، اِجْلِسْ.

– كله چې فعل معتل الفاء وي، د امر په صيغه کې يې د علت حرف حذف كيږي، لكه: وَقَفَ، يَقفُ، قِفْ. وَعَدَ، يَعِدُ، عِدْ. وَصَلَ، يَصِلُ، صِلْ.

**نوي لغتونه:** الطابور ( قطار – لين ) التفتوا: ( متوجه شئ ). لا تضايقوا ( مه تنګوي ) لا تشتموا: ( ښكنځل مه كوئ ).

**درسي ميتودونه:** پوښتنې او ځوابونه – يو كسيزه او ډله ييزه توګه.

**د لوست مرستندويه توکي:**

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونكي فعاليتونه | د زده كوونكو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونكى د سلام احوال پوښتنې د كورنۍ دندي له كتلو وروسته د تير درس ارزونه كوي.<br>– څوک ويلاى شي چې مونږ او تاسې ولې خپل د ژوند چاپيريال پاک ساتو؟<br>– د نوي لوست د سرليک پيدا كولو لپاره هڅوونكي پوښتنې<br>_ څوک ويلاى شي چې د ښوونځي مشر ته څه وايو او څوک د لين په سر زده كوونكو ته نصيحت كوي؟<br>محترم ښوونكى د ځوابونو وروسته د نوي لوست سر ليک چې ( كلمة المدير ) دى په توره تخته ليكي او زده كوونكو ته لارښوونه كوي چې نوى لوست په چوپتيا سره ولولي او سخت كلمات د ځان سره وليكي.<br>– محترم ښوونكى نوى لوست په مناسب آواز لولي او معنا يې كوي او هغه جملې چې د نصيحت په توګه ويل شويدي زده | زده كوونكي مختلف ځوابونه وركوي. |

| یادونه | فعالیتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| ۱ – نصح التلامیذَ مدیرُ المدرسةِ<br>۲–نتیجة مصاحبتهم تفسد الاخلاق.<br>۳ – اَن یسلموا علی زملائهم.<br>۴ – ان یستمعوا الی المعلم حین شرح الدرس.<br>۵ – ان یسلموا علی اهلهم. | کوونکو ته په تکرار لولي او په عملي کولو یې ډیر ټینګار کوي او زده کوونکو ته وایې چې په خپل ژوند کې دا نصیحتونه عملي کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په څو زده کوونکو لولي او سختې کلمې په توره تخته لیکي او معنا یې کوي او وروسته د نوي لوست لومړی او دویم تمرین په زده کوونکو د سوال او ځواب په ډول عملي کوي او ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي. | |
| زده کوونکي لیکي:<br>۱ – انتبه ! انتبهوا !.<br>۲ – ساعد. ساعدوا. | **ارزونه:**<br>– څوک د لوست دری جملې لوستلی او معنا کولی شي؟<br>– څوک د لوست د لغتونو معنا په تخته لیکي:<br>( الطابور – التفتوا – لا تشتموا ).<br>– څوک ویلای شي چې مدیر د اصدقاء په باره کې څه وویل؟ | ۱۰ دقیقې |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي د لوست پنځم تمرین چې د امر مفرد صیغي په جمع بدلول دي په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۵ دقیقې |

## لوست: شپږم ( دویمه برخه )

**سر لیک:** كلمة المدير.

**مخ:** ۳۲ – ۳۴

**وخت:** ۴۵ دقیقي ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – د امر صیغې له غائب مذکر او مؤنث ضمایرو سره ګردان کړي.

۲ – پدې پوه شي چې د امر فعل د مضارع له فعل څخه جوړیږي پدې ډول چې د مضارعت حرف ورڅخه لیري کیږي او د فعل آخر ساکن کیږي.

**نوي لغتونه:**

**لا تشاجروا** ( شخړه مه کوئ ) لا تُتْلِفُوا: له منځه مه وړئ ). اثاث: وسائل.

**درسي میتودونه:** پوښتنې او ځوابونه – دوه کسیزه او په ډله ییزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | – محترم ښوونکی د سلام احوال پوښتې د کورنۍ دندي د کتلو وروسته د تیر درس ارزونه کوي.<br>– څوک د امر دغه فعلونه په جمعې سره اړولی شي.<br>ساعد – اَحضر – اُکتب. | ۱ – اَسلموا. ۲ – اذهبوا.<br>۳ – اِستمعوا. ۴ – اُخرجوا. ۵ – سلِّموا.<br>– اِجلسي، اجلِسا، اِجلِسوا – اِجلِسنَ. |
| ۲۵ دقیقي | – محترم ښوونکی د لوست دریم تمرین په څو تنو زده کوونکو لولي د امر فعل په جملو کې زده کوونکو ته ښایې او په هغوی باندي یې تکراروي او وروسته څلورم تمرین چې د امر فعل ګردان د مفرد مؤنث، مفرد مذکر – او جمع مونث دي باید په عملې توګه تکرار کړي او ښوونکی دې ورسره پوره مرسته وکړي.<br>– محترم ښوونکی د نوي لوست شپږم تمرین چې د تشوا ځایونو ډکول دي په زده کوونکو په توره تخته کار کوی او مرسته دې ورسره وکړي، او بیا د لوست اووم تمرین په زده کوونکو په ډله ییزه توګه عملي کار کوي او په ټولو برخو کې ورسره پوره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی باید ټولو زده کوونکو ته پوره پاملرنه وکړي او په مساوي توګه دې ټولو ته د تمرینونو په حلولو کې برخه ورکړي. | ۲ – اسمعو – اِسمعنَ.<br>زده کوونکي لیکي:<br>۱ – اُدخل،۲ اِستمع،<br>۳– اُخرج، ۴ – ذاکر.<br>۵ – اَکمل، ٦ – اَطِع.<br>زده کوونکي لیکي.<br>۲ – اِذهب الی الفصل.<br>۳ – اِستمع الی المعلم حین شرح الدرس.<br>۴ – اُخرج من الفصل بعد الفصحةِ.<br>۵ – ذَاکِر دروسکَ في المساء. |
| ۵ دقیقي | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي د مدثر مبارک سورت لولي او ورڅخه د امر لس فعلونه راوباسي او په خپلو کتابچو کې یې لیکي. | |

## لوست: اووم ( لومړۍ برخه )

**سرليک:** أهميةُ الكهرباء

**مخ:** ۳۵ – ۳۷

**وخت:** ۴۵ دقيقي ( يو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکی باید:

۱ – متن سم ولولي او د آلې اسم وپيژني.

۲ – ماضي فعلونه د آلې په اسماوو بدل کړای شي.

۳ – د نوي لُغتونو معنا په تخته وليکي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

اسم آله: هغه اسم ته ويل کيږي، چې له ثلاثي متعدي فعل څخه جوړ شوی وي، او د همدې آلې په ذريعه دا فعل واقع شوی وي، لکه: ملقط، مقص.

اسم آله په درې وزنو راځي:

۱ – مِفْعَل، لکه: مِبْرَدٌ، مِلْقَطٌ، مِصْعَدٌ، مِثْقَبٌ.

۲ – مِفْعَلَة، لکه: مِرْوَحَة، مِكْنَسَة، مِطْرَقَة، مِلْعَقَة.

۳ – مِفْعَال، لکه: مِقْرَاض، مِفْتَاح، مِصْبَاح.

**نوي لغتونه:** المِذياع: راديو. الغسالة: د جامو وينځلو ماشين. المِكواةُ: اوتو. المروحةُ: پکی.

**درسي ميتودونه:** سوال او ځواب په يو کسيز او دوه کسيزه توګه.

**د لوست مرستندويه توکي:**

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقي | – محترم ښوونکی د سلام احوال پوښتني د کورنۍ دندې د کتلو وروسته د تير درس ارزونه کوي:<br>– څوک د امر صيغې لپاره څلور مثالونه ويلی شي.<br>– د نوي لوست د سر ليک پيدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتني.<br>– څوک ويلای شي چې برق څه ګټه لري؟ | |
| ۲۵ دقيقي | – محترم ښوونکی د ځوابونو وروسته د نوي لوست سرليک چې: اَهمية الكهرباءِ. دی په توره تخته ليکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې نوی لوست په چوپتيا سره ولولي او سخت کلمات د ځان سره ياد داشت کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز سره سم لولي او بيا د څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې نوی لوست په مناسب آواز د ټولګي مخې ته ولولي او معنا يې کړي وروسته د څو تنو زده کوونکو څخه غواړي | |

| | | |
|---|---|---|
| | چې د تختې مخې ته راشي او یاد داشت شوي کلمې په تخته ولیکي او معنا یې کړي.<br>– محترم ښوونکی دې د لوست لومړی او دویم تمرین د سوال او ځواب په ډول په زده کوونکو عملي کړي او په دغه تمرین کې ښوونکی باید کمزورو زده کوونکو ته برخه ورکړي، څکه چې سوال او ځواب ورکول د کتاب له مخې نه اجرا کیږي او همدا رنګه ځوابونه په دویم تمرین کې لیکل شویدي او یوائې لوستل غواړي، ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی دنوي لوست دریم تمرین چې په جملو کې د آلې د اسم پیدا کول دي په عملې توګه په زده کوونکو کار کوي او مرسته دې ورسره وکړي. | |
| | **ارزونه:**<br>– څوک لوست سم لوستلی شي؟<br>– څوک د برقي وسایلو نوم په عربي کې اخستلی شي؟<br>– اُتو، برقي بخاری، پکی، د کالیو وینځلو ماشین، رادیو. | ۱۰ دقیقي |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي د لوست څلورم تمرین چې د آلې اسم لیکل دي په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ۵ دقیقي |

## لوست: اووم ( دويمه برخه )

**سرليک:** اهميةُ الكهرباءِ.

**مخ:** ۳۸ – ۴۰

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکی باید:

۱ – ماضی فعلونه په مضارع او امر بدل کړای شي.

۲ – داسي جملې جوړې کړای شي چې د اسم الې ذکر پکې شوي وي.

**نوي لغتونه:**

صارت: وګرځیده. المدفاة: بخاری. الانباءُ: خبرونه.

**درسي میتودونه:** سوال او ځواب په یو کسیزه او دوه کسیزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د سلام احوال پوښتنې د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر درس د څو پوښتنو په ترځ کې ارزونه کوي:<br>–څوک د څو آلو نومونه اخستلی شي؟<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپل کتابونه خلاص کړي او د لوست پنځم تمرین په چوپتیا سره ولولي او فعلونه ګردان کړي. | زده کوونکي لیکي:<br>۱ – یعمل، اِعمل<br>۲ – یطبع، اِطبع.<br>۳ – یرکب، اِرکب.<br>۴ – یذهب، اِذهب.<br>۵ – یشرب، اِشرب. |
| ۲۵ دقیقې | – محترم ښوونکی زده کوونکې په مناسبو ګروپونو ویشې او لارښوونه ورته کوي چې فعلونه د ماضي څخه په مضارع او امر بدل کړي.<br>– محترم ښوونکی دې پوره مرسته وکړي<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین په زده کوونکو په وار سره په توره تخته لیکي یو یې جمله لیکي او بل یې تش ځایونه ډکوي او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکي په زده کوونکو د لوست اتم تمرین چې ټول د آلې نومونه دي لولي او ورته یې معنا کوي، لوستل باید په سمه توګه وشي<br>– محترم ښوونکی د لوست نهم تمرین چې ( الواجب المنزلي) دی په زده کوونکو په وار وار لولي او خپله یې ورته معنا | |

| | | |
|---|---|---|
| | کوي او بیا لاربښوونه کوي چې د آلې نومونه د ځان سره ولیکي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي الواجب المنزلي چې د آلې نومونه د جملو څخه جدا کول دي په خپلو کتابچو کې لیکي، د بیلګي په توګه:<br>بالمفتاح – بالمسطرةِ – بالممسحةِ | |

## لوست: اتم ( لومړی برخه )

**سر لیک:** في السوق.

**مخ:** ۴۱ – ۴۲

**وخت:** ۴۵ دقیقې

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – په خپلو منځو کې محاوره په سمه توګه وکړای شي.

۲ – د: کم او کی حرفونه وپیژني.

۳ – د نویو لغتونو معنا په تخته ولیکي.

**د ښوونکي لپاره لازمي معلومات**

ايّ: معرب اسم دی معنا يې د خپل مضاف اليه پورې تړلې ده، د مذکر او مؤنث دواړو لپاره استعماليږي، اوځينې وخت مؤنث راځي لکه: أيّة طالبة....؟

ايّ: ډير ډولونه لري:

شرطيه اي: شرطي (اي) ځينې وخت مجرور وي، لکه: بِأَيِّ مكان تجلس أجلسْ.

ځينې وخت مضاف اليه واقع کيږي، لکه: أمام اي مقعد تجلس أجلس.

اوځينې وخت ظرف ته يې اضافت کيږي، لکه: اي ساعة تطلبني تجدني.

اوکله داسې وي چې مصدر ته يې مضاف شي، بيا مفعول مطلق بلل کيږي، لکه: اي عمل تعمل، أعمل.

استفهامي اي:

اي استفهامي اسم دی، کله چې وروسته فعل ورڅخه لازم وي، بيا مبتدأ ګڼل کيږي، لکه اي طالب يضحک؟ اويا وروسته ورڅخه ظرف وي، لکه: اي کتاب امامک؟

اويا جار اومجرور وي، لکه: اي تلميذ في الملعب؟

کم په دوه ډوله استعمال لري:

۱ – استفهامي کم: په دې کم سره د معين شمير پوښتنه کيږي، لکه: کم تلميذا نجح؟

۲ – خبري کم: چې د زيادت معنا ورکوي، لکه: کم کتبٍ قرأت؟

**نوي لغتونه:** سِعر: قيمت. البدلةُ: جوړه. الرِّداءُ: څادر.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب په يو کسيزه او ډله ييزه توګه، په چوپتيا سره لوستل.

**د لوست مرستندويه توکي:**

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام احوال پوښتنې او د کورنۍ دندې له لیدلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک کولای شي د اسم آلې دوه مثاله ووايي؟<br>– د نوي لوست د سر لیک د پیدا کولو لپاره پاروونکي پوښتنې:<br>– څوک کولی شي ووايي چې بازار ته په عربي کې څه وايي؟ | |
| ۲۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د ځواب ویلو څخه وروسته د نوي لوست سر لیک چې ( السوقُ ) دی په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او نوي لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>– محترم ښوونکی لوست په لوړ آواز سره لولي او معنا کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست نوي لغتونه په تخته لیکي او معنا کوي يې.<br>– محترم ښوونکی لوست په درې تنو زده کوونکو لولي او کمک ورسره کوي.<br>– محترم ښوونکي د دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي چې یو له دوی څخه د ( البدلة )کلمه په تخته اولیکي او بل يې معنا ولیکي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي په دوو ډلو ویشي او دنده ورکوي چې لوست خپلو منځو کې ولولي او وروسته د هرې ډلې څخه یو یو زده کوونکی د ټولګې مخې ته راوغواړي چې لوست د سوال او ځواب ( محاورې ) په شکل ولولي.<br>– محترم ښوونکی د ضعیفو زده کوونکو څخه د لوست پوښتنه کوي او هغوی سره کمک کوي تر څو لوست په ښه توګه سره یاد کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین زده کوونکو ته په لاندې ډول په تخته حل کوي:<br>۱ – ذهب عصام و فاطمةُ الی السوقِ.<br>۲ – یریدُ عصامُ کتاباً.<br>۳ – سعرُ البدلة و الرداءِ اَربعمائةِ افغانی. | |

| | | |
|---|---|---|
| | ۴ – ترید فاطمةُ البدلة باللون الاخضر و الرداءَ باللون الابیض.<br>۵ – فاطمةُ ترید کتب المطالعة و القراءة و الاملاء –<br>محترم ښوونکی د لوست دویم او دریم تمرین په زده کوونکو د سوال او ځواب په شکل حل کوي او مرسته ورسره کوي.<br><br>**ارزونه:**<br>۱ – څوک کولی شي ووايي بازار ته په عربي ژبه کې څه وايي.<br>څوک د: البائعُ کلمې معنا ویلی شي؟؛<br>۳ – څوک کولی شي د سعر کلمه په تخته د معنا سره ولیکي.<br>۴ – څوک د ( اُرید ) کلمه په جمله کې استعمالولی شي.<br>محترم ښوونکی د لوست څلورم تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او یو مثال د نموني په شکل ورته حل کوي مثال: اَخذ سعید الرداءَ الاَسودَ من الدُکانِ. | ۱۰<br>دقیقي |

## **لوست: اتم ( دويمه برخه )**

**سر ليک:** في السوقِ.

**مخ:** ۴۳.

**وخت:** ۴۵ دقيقي.

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – عددونه په عربي ژبي ولوستلی شي.

۲ – د همزې ليکل د عددونو سره زده کړي او وليکي.

۳ – په عربي ژبې خپلو منځو کې خبري وکړای شي.

۴ – د نوو لغتونو معنا زده کړای شي.

**نوي لغتونه:**

البطيخُ : هندوانه. الحذاءُ: بوټان. الاستماعُ: اوريدل.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب – يو کسيز – دوه کسيز – او تکرار.

**د لوست: بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقي | محترم ښوونکی د سلام احوال پوښتنې او کورنۍ دندې له کتنې وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د: کم سعرُ البدلةِ – جمله معنا کړي.<br>– محترم ښوونکی د نوي لوست سر ليک چې تمرينات دي پر تخته ليکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي. | |
| ۲۵ دقيقي | – محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرين زده کوونکو ته حل او د همزې ليکل چې مخکې ورځخه کسره وي په اعدادو کې په تخته ليکي او زده کوونکو ته دنده ورکوي چې پر تخته يې وليکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرين زده کوونکو ته حل کوي او ستونزمن لغتونه ورته په نبنه او معنا کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرين په زده کوونکو حل کوي او يو زده کوونکی د ټولګې مخې ته راغواړي چې د تمرين جملې په تخته مرتبې وليکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اتم تمرين زده کوونکو ته په لاندې شکل سره حل کوي.<br>۱ – ايُّ خدمة. ۲ – تفضل هنا. ۳ – ايُّ لونٍ تريدين؟ ۴ – | |

| | المطلوبُ سبعمائة افغاني.<br>وروسته له څو تنو شاګردانو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د تمرين پاتې جملې په تخته وليکي. | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقيقي | محترم ښوونکی د لوست نهم تمرين چې نوی لغتونه دي زده کوونکو ته په تخته ليکي او معنا کوي بيا له يو تن زده کوونکي څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د دغه تمرين کلمات په لوړ آواز ولولي او نور زده کوونکي دې ورسره تکرار کړي. | ۱ – اُريد لحماً و دجاجةً.<br>۲ – هل تريدين شيئا آخر.<br>۳ – ايُّ کتاب تريدين.<br>۴ – اِدفع مائتی افغانی.<br>۵ – لدينا ثياب جميل. |
| ۵ دقيقي | **ارزونه:**<br>۱ – څوک کولی شي داسې کلمه ووايي چې وسط کې همزه ولري؟<br>۲ – څوک ويلای شي پنځوسوو ته په عربي کې څه وايي؟<br>۳ – څوک کولی شي د ۱۰۰ عدد په حروفو سره په تخته وليکئ.<br>۴ – څوک کولای شي د قماش غالٍ جمله معنا کړي. | ۱ – من فضلک.<br>۲ – ايُّ کتاب تريد.<br>۳ – اِدفع مائتی ا فغانی. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی د لوست آخرنی تمرين زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او دوه مثاله ورته د نموني په ډول په تخته حل کوي. | |

## لوست: نهم ( لومړۍ برخه )

**سر لیک:** عِنايَةُ الوالدين..

**مخ:** ۴۷ – ۴۸

**وخت:** ۴۵ دقيقې

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – د حال په معنا او مفهوم پوه شي.

۲ – د حال جملې وپېژني.

۳ – په عربي ژبې خبري ( محاوره ) وکړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

حال: اسم د منصوب چې غالباً نکره او مشتق وي په معموله توګه حالت او څرنګوالی دفاعل، مفعول او يا د اِسم مجرور په وخت د وقوع د فعل کې بيانوي لکه: جاء محمد راكباً – رأيتُ محمداً ضاحكاً – مررتُ بالدارِ عامرَةً.

حال په درې قمسه دی:

۱ – مفرد لکه: جاء زيد ضاحكاً.

۲ – شبه جمله په هغه موقع کې چې وروسته د معرفې څخه وي لکه:

رأيتُ القمر بين النجوم، دلته کلمه د ( بين ) شبه جمله متعلق په حال محذوف په تقدير د ( مستقراً ) سره ده.

۳ – جمله: حال په لاندې شرايطو سره جمله وي.

الف: خبری جمله: يعنې چې اِحتمال د صدق او کذب په هغې کې شتون ولري او وروسته له معرفې څخه وي لکه: أقبل الولدُ يركضُ، جمله د ( يركضُ ) خبرې جمله ده په محل کې منصوب او حال ده.

ب: حروف اِستقبال ( س، سوف ) چې په صدر – اول کې نوي.

ج: جمله حاليه بايد د حال د صاحب سره ارتباط ولري لکه ( لئن أكله الذِئبُ و نحنُ عصبة ) [1]

**نوي لغتونه:**

المدفأةُ: بخارۍ. خفض. کموالی. مبتلّ: لوند. محموم: د تبې په حالت کې.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب – تکرار - يو کسيز – په چوپتيار سره لوستل.

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته، تباشير – د لغتونو کارتونه.

[1] – د يوسف سورت ۱۴ آيت .

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی وروسته له سلام احوال پوښتنې، حاضرۍ اخیستل،د ټولګي نظم د کورنی دندي کتلو څخه، د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک کولای شي د ۳۰۰۰ عدد په عربي ژبه ووایې؟<br>– محترم ښوونکی د نوي لوست د سرلیک د پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې کوي.<br>– څوک ویلی شي مور او پلار د خپل اولاد په وړاندې څه مسئولیت لري؟<br>– محترم ښوونکی وروسته د ځواب موندلو د نوي لوست سرلیک چې ( عناية الوالدين ) دی په تخته لیکي او زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي، او مشکل لغتونه یاد داشت کړي.<br>– محترم ښوونکی یو ځل پخپله لوست په لوړ آواز سره لولي او وروسته د درې تنو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست پنځه پنځه کرښې په مناسب آواز سره ولولي.<br>– محترم ښوونکی لوست معنا کوي او په زده کوونکو یې تکراروي او مشکل لغتونه په تخته لیکي او د یو تن زده کوونکي څخه غواړي چې لوست معنا کړي، همدا رنګه له دویم زده کوونکي څخه غواړي چې مشکل لغتونه ولیکي او کلمات یې معنا کړي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي په درې ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې لوست خپلو منځو کې د معنا سره تکرار کړي او بیا د هرې ډلې څخه یو یو تن د ټولګي مخې ته راځي او لوست د معنا سره لولي، خو باید چې دا هر څه د هڅونې او مرستې په فضا کې تر سره شي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د عناية الواليدين معنا ویلای شي؟<br>– څوک د لوست دوه لومړی کرښې معنا کولای شي؟<br>– څوک کولای شي ( محموماً ) مبتل – کلمې په تخته ولیکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او یوه جمله د نموني په شکل ورته حل کوي.<br>عادَ احمدُ الی المدرسةِ مُتعباً. | |

## لوست: نهم: دویمه برخه

**سرلیک:** عناية الوالدين:

**مخ:** ۴۹ – ۵۲

**وخت:** ۴۵ دقیقې.

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – مقصوره الف وپیژني.

۲ – د تانیث تاء چې د ماضي فعل سره پیوست وي په بشپړه توګه وپیژني.

۳ – د حال جملې ولیکي.

۴ – د نوو لغتونو په معنا پوه شي او خپلو کې محاوره وکړای شي.

**نوي لغتونه:** مُتعَباً، ستړی. ساخناً: ګرم. مسرعاً: تیز چالاک.

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – یو کسیز – ډله ییز او د تکرار په شکل.

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته – تباشیر – د نوو کلماتو کارتونه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی وروسته له سلام – احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې له کتلو نه د تیر لوست ارزونه کوي<br>– څوک د ( خفض ) د کلمې معنا ویلای شي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او د لوست دویم تمرین په زده کوونکو د سوال او ځواب په شکل حل کوي یو زده کوونکی سوال لولي او دویم یې ځواب او ښوونکی ورسره مرسته کوي او جملې یې معنا کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست دریم تمرین زده کوونکو ته حلوي او د هغو کلمو په هکله چې لاندي ورڅخه خط کش شوی پوره معلومات ورکوي چې دا کلمې د حال کلمې دي او څرنګه په جمله کې استعمال شوي او دا څرنګه پیژنو.<br>– محترم ښوونکی د لوست څلورم تمرین یو ځل خپله حل کوي او بیا له درې تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د تمرین ځوابونه په تخته ولیکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین زده کوونکو ته داسي حل کوي چې دټولګي مخې ته راشي او هر یو یوه جمله په تخته ولیکي او مناسبي کلمې په خالي ځایونو کې استعمال کړي. | ۲ – اَکرمتِ الأُختُ و الدَها. |

| | | |
|---|---|---|
| | **نمونه:**<br>۱ – بَرَی الکاتبُ القلمَ.<br>۲ – دعا الابُ الطبیبَ.<br>محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین په زده کوونکو حل کوي او د نمونې په ډول یو مثال ورته په تخته حلوي.<br>۱ –.......مُرتَجِفاً. | ۳ – حاولتِ الجدةُ خفضَ حرارةِ حفیدها بالماء.<br>۴ – حزنت العمةُ حین رات ابن اخیها مریضاً. |
| | ښوونکی زده کوونکي په دوو ډلو ویشي او ورڅخه غواړي چې د تمرین پاتې جملې خپلو کتابچو کې ولیکي او خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړي او وروسته یو یو تن د هرې ډلې څخه حل شوي جملې لولي، او باید چې دا هر څه د هڅوونې او مرستې په فضا کې تر سره شي. | ۳ – اشتری الابُ الدَّواءَ.<br>۴ – نادی الابُ اولادَهُ.<br>۵ – داوی الطبیبُ المریضَ |
| | محترم ښوونکی د لوست اووم تمرین چې نوي لغتونه دي زده کوونکو ته په لوړ آواز لولي او معنا کوي یې او وروسته له یو تن زده کوونکي څخه غواړي چې د دغه تمرین کلمات په لوړ آواز ولولي او نور زده کوونکي یې ورپسې تکراروي. | ۲ – ساخناً. |
| | **ارزونه:**<br>- څوک د مَسروراً – متعَباً – کلمې په جملو کې استعمالولای شي؟<br>- څوک کولای شي د ساخنا کلمې معنا ووایې؟<br>- څوک ویلی شي چې روغتون ته په عربي کې څه وایې؟<br>- محترم ښوونکی د لوست آخري تمرین الواجب المنزلي زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او درې جملې د نمونې په ډول ورته په تخته حل کوي.<br>۱ – عاد احمدُ من المدرسةِ متعَباً.<br>۲ – جَلَسَ احمدُ قُربَ المدفاة مرتجفاً.<br>۳ – خرجَ الاَبُ من المستشفی مُبتَسِماً. | ۳ – مبتمساً.<br>۴ – مسروراً. |

## لوست: لسم – لومړی برخه.

**سرليک:** عيادةُ المريض.

**مخ:** ۵۳ – ۵۴

**وخت:** ۴۵ دقيقې ( يو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – ظرف زمان وپيژني.

۲ – د ظرف زمان جملې وليکي.

۳ – د لوست په معنا او لوستلو پوه شي.

۴ – په عربي ژبه محاوره وکړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

مفعول فيه: مفعول فيه چې ورته ظرف هم وايې يو منصوب اسم دی چې په زمان او يا مکان دلالت کوي لکه: حضرت صباحاً أمام المعلم.

په دې مثال کې د ( صباحاً ) او ( أمام ) کلمې د فعل د وقوع زمان او مکان ښايي.

ظرف په دوه ډوله دی:

ظرف زمان: هغه کلمه ده چې په معينې زمانې دلالت کوي لکه ( درست صباحاً )

ظرف مکان: هغه کلمه ده چې په معين مکان دلالت کوي لکه: جلستُ أمامَ الطاولةِ.

ظروف يا مبهم وي يا معين:

مبهم ظرفونه هغه ظرفونه دي چې د نامعلومې زمانې په اندازه دلالت کوي لکه: وقت، حين، دهر.

او معين ظرفونه د زمان: هغو ظروفو ته وايي چې په محدود او معين وخت دلالت کوي لکه: ساعات، يوم، شهر، مياشتې، فصلونه، د هفتې ورځې.

او د مکان مبهم ظرفونه هغه دي چې په نامعلوم مکان دلالت کوي لکه: شپږ جهتونه: أمام، وراء، يمين، شمال، فوق، تحت.

او د مکان معلوم ظرفونه هغه دي چې په معين او معلوم مکان دلالت کوي لکه: دار، مدرسة، مسجد.

**نوي لغتونه:**

کرةُ القدمِ: فوټبال. زميل: ملګری. اَثناء اللعبِ: د لوبې په وخت کې. المَللُ: ستوماني.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب – تکرار – يو کسيز – ډله ييز – او په چوپتيا سره لوستل.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د کورنۍ د ندې له کتنې، د ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– ځوک ویلای شي – مستشفی – څه ته وایي ؟<br>– محترم ښوونکی د نوي لوست د سرلیک پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتني کوي.<br>– ځوک ویلای شي ووایي مریض د علاج لپاره چیري وړو؟<br>– محترم ښوونکی وروسته له ځواب موندلو د نوي لوست سرلیک چې (عیادةُ المریض) دی پر تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته متوجه شي او لوست په چوپتیا سره ولولي.<br>– محترم ښوونکی د لوست متن په مناسب آواز سره لولي او معنا کوي او بیا له دریو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو د لوست پنځه پنځه کرښې په لوړ آواز سره ولولي وروسته ښوونکی د ځلورو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست جملې معنا کړي او همدا رنګه له دوو تنو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي یو یې د لوست اوله جمله او بل یې دویمه جمله په تخته ولیکي او بیا یو تن راغواړي چې دواړه جملې معنا کړي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي په دوو ډلو ویشي او دنده ورکوي چې لوست د معنا سره خپلو منځو کې تکرار کړي او بیا د هري ډلې څخه یو تن لوست په لوړ آواز د معنا سره لولي، دا هر څه د هڅوونې او مرستې تر سیوري لاندې تر سره کیږي.<br>– محترم ښوونکی د ظرف زمان (ما) استفهامیه په هکله زده کوونکو ته پوره او لازم معلومات ورکوي او ضعیفو زده کوونکو ته وخت ورکوي او هغوی ته پاملرنه کوي تر څو په لوست پوه شي او برخه واخلي.<br><br>**ارزونه:**<br>۱ – ځوک د عیادةُ المریض –معنا ویلای شي.<br>۲ – ځوک د الملل معنا ویلای شي؟<br>۳ – ځوک کولای شي د لوست دوه جملې معنا کړي.<br>محترم ښوونکی د لوست اول تمرین دوه مثالونه د نمونې په ډول زده کوونکو ته په تخته حل کوي او بیا دغه تمرین دوی ته کورنۍ دنده ورکوي.<br>۱ – زارَ مبارک زمیلهُ في بیتهِ. | |

## **لوست**: **لسم**: **دويمه برخه**

**سرليک:** عيادةُ المريض.

**مخ:** ۵۵ – ۵۸

**وخت:** ۴۵ دقيقې ( يو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – ( ما ) استفهاميه وپيژني.

۲ – د ( ما ) ليکل کله چې د مِن – عن – ل له حروفو سره يو ځای وي زده کړي.

۳ – په عربي ژبه محاوره او خبري کول زده کړي.

۴ – زده کوونکي د نوو کلماتو په معنا پوه شي.

**نوي لغتونه:**

اُشاهدُ: ګورم. اَتَناولُ: خورم. صيفاً: اوړی. شتاءً: ژمی.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب. يو کسيز – ډله ييز.

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته – تباشير – د نوو کلماتو کارتونه.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتنې او د ټولګي له تنظيمولو او حاضرۍ اخيستلو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي:<br>– څوک ويلای شي د مريض پوښتنې ته په عربي کې څه وايې؟<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او وروسته دوه تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي تر څو د لوست دويم تمرين د سوال او ځواب په څير ولولي او ښوونکی يې ورته معنا کړي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته د لوست دريم تمرين حل کوي او دوې ته د ظرف زمان کلمې ښايې لکه: ليلاً، ظُهراً، مَساءً، يومَ العيد، الساعةَ الواحدةَ. نهاراً.<br>– محترم ښوونکی له پنځو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګې مخې ته راشي او هر يو د څلورم تمرين يوه يوه جمله په تخته وليکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرين زده کوونکو ته په تخته حل کوي او د ظرف زمان کلمې ورته ليکي لکه: ليلاً –نهاراً مساءًا.<br>ظُهراً – يومَ العيد – الساعةُ الواحدةُ. | ۲ – لِمَ.<br>۳ – مِمَّ.<br>۴ – مِمَّ.<br>۵ – عَمَّ<br>۶ – عَمَّ<br>۱ – ليلاً. |

| | | |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین په داسې شکل حلوي چې زده کوونکي په دوو ډلو ویشي او دنده ورکوي چې خپلو منځو کې د جملو خالي ځایونه په مناسبو کلمو خپلو کتابچو کې ولیکي او وروسته یو تن د هرې ډلې په استازي توب د ټولګي مخې ته راځي او لیکل شوي جملې لولي، البته د مرستې او هڅوونې تر سیوري لاندې باید تر سره شي. | ۲ – صیفاً.<br>۳ – شتاءً.<br>۴ – یوم.<br>۵ – قبل. |
| | – محترم ښوونکی د لوست د اووم تمرین درې جملې خپله په تخته لیکي او وروسته د درې تنو زده کوونکو څخه غواړي چې پاتې یوه یوه جمله د حروفو څخه جوړه او په تخته ولیکي لکه:<br>۱ – ذهب مبارک اِلی ایران قبل اسبوع.<br>۲ – اَلعبُ کرة القدمِ نهاراً. | ۴ – اَذهبُ الی المدرسةِ صباحاً.<br>۵ – اُشاهدُ برامجَ التلفاز لیلاً.<br>٦ – اِذهبُ الی المکتبةِ بعد الظهرِ. |
| | – محترم ښوونکی د لوست د اتم تمرین دوه کلمې او د هغو ضد په تخته لیکي او بیا یو تن زده کوونکی د تختې مخې ته راغواړي چې پاتې کلمې او د هغو ضد ولیکي.<br>۱ – صباحاً – مساءً – نهاراً – لیلاً. | ۳ – قبلُ – بَعدُ.<br>۴ – شتاءً – صیفاً. |
| | – محترم ښوونکی د لوست د نهم تمرین کلمات په لوړ آواز لولي او معنا یې کوي. | |
| | **ارزونه:**<br>۱ – څوک د لیلاً د کلمې ضد ویلای شي؟<br>۲ – څوک د اُشاهِدُ د کلمې معنا ویلای شي؟<br>۳ – څوک ویلای شي توپ ته په عربي کې څه وایي؟<br>۴ – څوک د ظرف زمان دوه کلمې ویلای شي؟<br>– محترم ښوونکی د لوست د الواجب المنزلي تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او دوه مثاله د نمونې په توګه ورته په تخته حل کوي لکه: صباحاً –مساءاً. | ۱ – قبلَ ۲– العصرِ<br>۳ – المغربُ ۴– العشاءُ<br>۵ – العشاءُ. |

## لوست: یوولسم – لومړی برخه

**سر لیک:** في المطرِ خیر و برکة

**مخ:** ۵۹ – ٦۰

**وخت:**

**موخې:**

۱ – زده کوونکي باید مفعول مطلق وپیژني.

۲ – زده کوونکې د مفعول مطلق استعمال په جملو کې و پیژني.

۳ – زده کوونکي باید د نوو کلماتو په معنا پوه شي.

۴ – زده کوونکي باید د جملو لوستل او لیکل یاد کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

مفعول مطلق: هغه منصوب مصدر دی چې د فعل له لفظ او یا مترادف څخه یې د فعل د تاکید، نوعې او یا عدد د بیانولو لپاره استعمالیږي.

مفعول مطلق د درې شیانو په منظور استعمالیږي.

۱ – د فعل د تاکید لپاره لکه: اِجتهد أیها التلمیذ اجتهاداً، قرأتُ قراءةً.

۲ – د فعل د وقوع د د فعاتو د شمارې د بیان لپاره لکه: ضربتهُ ضربةً. دقّتِ الساعةُ دقتین.

۳ – د فعل د نوع د بیان لپاره لکه: سرتُ سیراً حَسَناً، سرتُ سیر الصالحین. او په ځینې ځایونو کې کلمې د مفعول مطلق په ځای راځي چې دغه ځایونه عبارت ده له:

۱ – هغه کلمې چې مترادف وي لکه: جسلتُ قُعوداً، چې ( قعوداً ) مترادف د جلوس ده.

۲ – بل مصدر یا اِسم مصدر د همغې مادې څخه لکه: حکیته کلاماً – ای تکلیماً.

۳ – صفت هم د مفعول مطلق په ځای راتلای شي لکه: خاطبته أحسنَ خطاب.

**نوي لغتونه:**

غُیوُماً: وریځې – سَالَ: رواني شوي – سَیَلَاَناً – د اوبو بهیدل.

**د لوست میتودونه:** – سوال او ځواب – یو کسیز – ډله ییز – تکرار – په چوپتیا مطالعه.

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته – تباشیر – د کلماتو کارونه.

**د لوست بهیر:**

| وخت ۵ دقیقې | د ښوونکې فعالیتونه | د زده کوونو فعالیتونه |
|---|---|---|
| | محترم ښوونکی وروسته له سلام احوال پوښتنې د ټولګې نظم، او د کورنۍ دندې له کتنې څخه د تیر لوست ارزونه کوي<br>– څوک د برامج د کلمې معنا ویلای شي.<br>– څوک د – و به یَتَوَفَرُ الماءُ ) معنا ویلای شي؟<br>محترم ښوونکی د نوی لوست د سرلیک پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې کوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | – ځوک کولی شی د باران ګټې بیان کړي.<br>محترم ښوونکی وروسته له ځواب موندلو څخه د نوي لوست سر لیک چې ( في المَطَرِ خیر و برکة ) دی په تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته متوجه شي او په چوپتیا سره لوست ولولي.<br>– محترم ښوونکی د درې تنو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو د لوست څلور څلور کرښې ولولي او وروسته ښوونکی پخپله لوست په لوړ آواز سره لولی او بیا په جلا جلا توګه د هرې جملې معنا کوي او د مشکلو کلماتو معنا په تخته لیکي.<br>– محترم ښوونکی د درې تنو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست د معنا سره ولولي او د یوه تن څخه غواړي چې د لوست لمړۍ جمله په تخته ولیکي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته د مفعول مطلق کلمې ښیې، هغه کلمې چې په لوست کې ذکر شوي دي او معلومات ورکوي.<br><br>**ارزونه:**<br>– ځوک کولای شي د مفعول مطلق یو مثال راوړي؟<br>– ځوک ویلای شي د سَالَ الماءُ – معنا څه ده؟<br>– ځوک ویلای شي باران وریدلو ته عربي کې څه وایي؟<br>– ځوک د غُیوماً معنا ویلای شي؟<br>محترم ښوونکی د لوست اول تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او د نمونې په ډول اوله جمله ورته په تخته حلوي.<br>مثال: خرج محمد لِاَداءِ صَلاَة الفجرِ. | ۲ – نعم کان محمود مسروراً بِنُزول المطر.<br>۳ – قال محمود لابنه: یجِبُ ان تشکر الله شکراً جزیلاً.<br>۴ – قال الابن: نحمدُ الله حمداً کثیراً علی نُزُلِ المَطَرِ. |

## لوست – یوولسم – دویمه برخه

**سرلیک** ( في المطر خیر و برکة )

**مخ:** ٦١ – ٦۴

**وخت:** ۴۵ دقیقې.

**موخې:**

١ – زده کوونکي د مفعول مطلق کلمې په جملو کې استعمال کړای شي.

٢ – زده کوونکې د الف مقصوره لیکل په آخر د اسماؤ کې و پیژني.

٣ – زده کوونکې محاوره او خبري کول خپلو منځو کې په عربي ژبه وکړای شي.

۴ – زده کوونکې د نوو کلماتو معنا او استعمال په جملو کې وپیژني.

**نوې لغتونه:**

غاص – غوټه وهل په اوبو کې – یتوکأ – تکیه کول – رَمَی – ویشتل.

د لوست مرستندویه توکي: تخته، تباشیر، د کلماتو کارتونه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی وروسته له سلام احوال پوښتنې او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک د غیوما – معنا کولای شي؟<br>– څوک د و تخضر الأرض – معنا ویلای شي.<br>محترم ښوونکی د لوست دوهم تمرین داسې حل کوي،<br>دوه تنه زده کوونکي د ټولګې مخې ته راغواړي چې د کتاب له مخې یو تن سوال کوي او بل یې ځواب ورکوي او ښوونکی ورته د جملو معنا کوي.<br>محترم ښوونکی د لوست د دریم تمرین په هکله زده کوونکو ته پوره معلومات ورکوي او هغه کلمې چې لاندې ورڅخه خط دی شرح کوي او په جمله کې یې موقعیت بیانوي.<br>– محترم ښوونکی د څلورم تمرین دوه جملې په تخته حلوي او وروسته د درې تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تمرین یوه یوه جمله په تخته ولیکي او خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړي:<br>١ – قال.....٢ – زاد.......<br>٢ – محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین په تخته حلوي او زده کوونکو ته دنده ورکوي چې حل شوي کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>١ – العصا. ٢ – الضحی ٣ – منی – ۴ – القری ۵ – الصفا ٦ – العلیا ٧ – مصطفی. | د څلورم تمرین حل<br>٣ – باع..........<br>۴ – غاص........<br>۵ – عار..........<br><br>د شپږم تمرین حل<br>١ – استماعاً ٢ – شکراً<br>٣ – بردةً ۴ – کتابةً. |

| | | |
|---|---|---|
| | محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین په زده کوونکو داسې حلوي چې زده کوونکي په درې ډلو ویشي او دنده ورکوي چې خپلو منځو کې د جملو خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړي او کتابچو کې یې ولیکي چې وروسته بیا ښوونکی د دوی کتابچې ګوري او که غلطي ولري اصلاح کوي یې.<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرین زده کوونکو ته په تخته حلوي او د هغو کلمو په هکله چې خالې ځایو کې اضافه کیږي معلومات ورکوي د موقعیت او معنا له پلوه.<br>١ – هدماً ٢ – دُقّة ٣ – وقوفاً ۴ – نوماً.<br>محترم ښوونکی د اتم تمرین کلمات زده کوونکو ته معنا کوي او دوی ځخه غواړي چې دغه کلمات د معنا سره خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>محترم ښوونکی د لوست آخرنۍ تمرین الواجب المنزلي زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او یوه جمله د نموني په ډول په تخته ورته حلوي.<br>١ – نام الطفل نوماً هادئاً. | ٢ – ضربت الكرة ضربةً قويةً<br>٣ – طرقت الباب طرقاً شديداً.<br>۴ – استثمر وقتک استثماراً.<br>۵ – اكتب النصّ كتابة واضحةً. |

## لوست: دولسم (لومړی برخه)

**سرليک:** من فوائد الفواكه.

**مخ:** ٦٥ – ٦٦

**وخت:** ۴۵ دقيقې.

**موخې:**

۱ – زده كوونكي افعال خمسة بايد وپيژني.

۲ – زده كوونكي د لوست په متن كې د افعال خمسة په جملو پوه شي.

۳ – زده كوونكي بايد لوستل – ليكل – او محاوره وكړای شي.

۴ – زده كوونكي د لوست د جملو په معنا پوه شي.

**أفعال خمسة ( پنځګوني )**

هر هغه فعل مضارع چې په ( الف اثنين ) او ( واو جمع ) او ( ياء ) مخاطب سره متصل وي لكه: يكتبان، تكتبان، يكتبون، تكتبون، تكتبين. دغه افعال په ثبوت د نون سره مرفوع او په حذف د نون سره منصوب او مجزوم كيږي لكه: المواطنون يدافعون عن وطنهم، كلمه د ( يدافعون ) فعل مضارع مرفوع په ثبوت د نون د افعال خمسة څخه ده. ( الطلاب المجدون لن يقصِّروا في واجباتهم ) كلمه د ( يقصروا ) فعل مضارع منصوب په حرف ( لن ) سره او علامه د نصب يې د نون حذف چې افعال خمسة څخه ده.

( أنت يا فاطمةُ لم تكتبي درسكِ ) كلمه د ( تكتبي ) فعل مضارع مجزوم په حرف ( لم ) سره او علامه د جزم يې د نون حذف چې افعال خمسة څخه ده.

افعال خمسة:

۱ – **يفعلون:** يدرسون.

۲ – **تفعلون:** تدرسون.

۳ – **يفعلان:** يدرسان.

۴ – **تفعلان:** تدرسان.

۵ – **تفعلين:** تدرسين.

چې فاعل دغو افعالو كې ( واو ) او ( الف ) او ( ياء ) ده.

**نوي لغتونه:**

الفواكه: ميوه. الخضروات: تركاري. البرتقال: مالته. الجَزَر: ګازره. الحديد – اوسپنه. الأَسنان: غاښونه. العظام: هډوكي. ضغط الدم – دويني فشار.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب – تكرار – يو كسيز – ډله ييز – په چوپتيا سره مطالعه.

**د لوست مرستندويه توكي:** كتاب – تخته – تباشير – د كلماتو كارتونه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکی فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی وروسته له سلام احوال پوښتنې د ټولګې نظم او حاضرۍ اخیستلو څخه د تیر لوست ارزونه کوي څوک د ( نَزَلَ المطرُ نزلاً شدیداً ) معنا ویلای شي؟<br>– محترم ښوونکی د نوي لوست د سر لیک پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې کوي.<br>– آیا میوي ګټه لري؟<br>– څوک کولای شي د میوو ګټې بیان کړي؟<br>– محترم ښوونکی وروسته له ځواب موندلو څخه د نوي لوست سرلیک چې ( من فوائد الفواکه ) دي په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي تر څو لوست په چوپتیا سره مطالعه کړي.<br>– محترم ښوونکی لوست په مناسب آواز سره لولي او بیا د هري جملې په جلا توګه معنا کوي او مشکل کلمات سره د معنا په تخته لیکي او وروسته د درې تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست پنځه پنځه کرښې د معنا سره ولولي او همدا رنګه له یو تن څخه غواړي چې د لوست اوله جمله د حرکاتو سره په تخته ولیکي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي په دوو ډلو ویشي تر څو خپلو منځو کې لوست تکرار کړي او وروسته د هرې ډلي څخه یو تن د ټولګې مخې ته راځي او لوست ولولي چې د ښوونکي له طرفه ورسره مرسته کیږي او هڅول کیږي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته د لوست په متن کې د افعال خمسة جملې په ګوته کوي او ورته معلومات ورکوي او همدا رنګه له ضعیفو زده کوونکو څخه د لوست په اړه پوښتنې کوي او هغوی ته وخت ورکوي چې لوست سم یاد کړي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د افعال خمسة یو مثال ویلای شي؟<br>– څوک د الحدید، العظام – معنا ویلای شي؟<br>– څوک ویلای شي چې ګازري ته په عربی کې څه وایي؟<br>– محترم ښوونکی د لوست اول تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او یوه جمله د نمونې په ډول ورته په تخته حل کوي.<br>– كانت فاطمة تقرأ في كتابٍ. | ۲ – جلس الأخوان يتبادلان المعلومات.<br>۳ – البرتقال يحتوي على الحديد.<br>۴ – تحرص فاطمة على أكل الخضروات لأنها غنية الفيتامينات و مفيدة لصحةِ الأسنان. |

## لوست: دولسم: دویمه برخه

**سر لیک:** من فوائد الفواکه.

**مخ:** ۶۷ – ۷۰

**وخت:** ۴۵ دقیقي ( یو درسی ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ –منفصل ضمائر د فعل مضارع سره سم ګردان کړای شي.

۲ –د همزه لیکل په کرسي الف باندي صحیح وپیژني.

۳ –خپلو کې په سمه توګه محاوره په عربي ژبي وکړای شي.

۴ –نوي کلمات په جملو کې استعمال کړای شي.

**نوي لغتونه:**

۱ – العِنَبُ – انګور ۲– العصیر: جوس.۳ – الفلفل – مرچ. ۴– البصلُ – پیاز.

د لوست مرستندویه توکي: کتاب – تخته – د کلماتو کارتونه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونكي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی وروسته له سلام، احوال پوښتنې او کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک کولای شي – العظام – الحدید معنا کړي؟<br>– څوک ویلای شي مالتې ګازرې ته عربې کې څه وایي؟<br>– محترم ښوونکی د لوست دویم تمرین د دوو تنو زده کوونکو په واسطه د سوال او ځواب په شکل حل کوي، دوه تنه د ټولګي مخې ته راغواړي او د کتاب له مخې یو سوال کوي او بل یې ځواب وایي. | د څلورم تمرین حل<br>أنتُما تاکلانِ.<br>أنتُما تتبادلانِ.<br>أنتُما تُداوِمانِ.<br>أنتُما تَحرصانِ. |
| ۲۵ دقیقي | – محترم ښوونکی د لوست دریم تمرین زده کوونکو ته په تخته لیکي، او هغه فعلونه چې افعال خمسة دي زده کوونکو ته ښایي لکه: تفعَلین – تأکلان – تأکلون – یتبادلان – یُداومون<br>– محترم ښوونکی د لوست څلورم تمرین زده کوونکو ته په تخته لیکي او یو مثال ورته حل کوي او وروسته دوه تنه زده کوونکی د تختې مخې ته راغواړي چې پاتې مثالونه حل کړي لکه:<br>أنتِ تأکلین – أنتِ تتبادلین – أنتِ تُداومینَ – أنتِ تحرصِین.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین زده کوونکو ته په تخته لیکي او وروسته پنځه تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي چې په هره جمله کې همزه چې په الف لیکل شوي وښایي.<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي تر څو د لوست شپږم تمرین | یاکلانِ – یتبادلان<br>یُداوِمانِ – یحرِصانِ.<br>تأکلون – تتبادلونَ.<br>تُداومونَ – تحرصُونَ.<br>یأکلُونَ – یتبادَلونَ.<br>یُداومونَ – یَحرصُونَ.<br>د اووم تمرین حل |

| | | |
|---|---|---|
| | چې په مناسبو کلمو دخالي ځایونو ډکول دي کار کوي.<br>محترم ښوونکی د لوست د اووم تمرین دوه جملې په تخته لیکي او حل کوي یې او بیا له دری تنه زده کوونکو څخه غواړي چې پاتي جملې په تخته حل کړي.<br>لکه: المؤمنون يؤَدُّون...۲ – القاضيان يَحكمانِ | ۳ – الطالبان يتدربان.<br>۴ – الأبُ يشتري.<br>۵ – التلميذُ يهتَمُّ. |
| | – محترم ښوونکی د اتم تمرین کلمات زده کوونکو ته په لوړ آواز لولي او معنا یې کوي او زده کوونکو څخه غواړي چې دغه کلمات د معنا سره کتابچو کې ولیکي. | ۳ – على الحاسوبِ<br>۴ – الكُتُبُ.<br>۵ – عليٌّ أكلُ الخضرواتِ. |
| | – محترم ښوونکی د لوست وروستنی تمرین الواجب المنزلي زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او د نمونې په ډول دوه جملې ورته په تخته حل کوي.<br>۱ –.......... الدرس.<br>۲ –..........المعلومات. | |

## **لوست: دیارلسم – لومړۍ برخه.**

**سرلیک:** حادِثُ زِلزالٍ.

**مخ:** ۷۱ – ۷۲

**وخت:** ۴۵ دقیقي ( یو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ –د تمییز په معنا پوه شي.

۲ –د لوست په جملو کې تمییز وپیژني.

۳ –د لوست په معنا پوه شي.

۴ –په محاوره او د کلماتو په استعمال پوه شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات.**

تمییز یو اسم منصوب او نکره دی چې مبهم ( پټ ) صفت او همدا رنګه مبهم ( پټ ) نسبت د خپل ځان لپاره روښانه او واضح کوي لکه: اِشتریتُ عشرین کتاباً ) په دې مثال کې د ( کتاباً ) کلمه مبهمه معنا ( عشرین ) روښانه کړي ده او یا ( اِشتهر التاجر أمانةً ) دلته د ( أمانة ) کلمې د تاجر شهرت روښانه کړی چې د هغه شهرت په څه شي کی وه.

تمییز په دوه نوعه دی:

۱ – تمییز مفرد یا تمییز ذات لکه چې په اول مثال کې ذکر شوه ( عشرین ).

۲ – تمییز لکه چې په دویم مثال کې ذکر شوه ( أمانة )

تمییز مفرد په څلورو ځایونو کې استمالیږي.

۱ – وروسته د اسماء اوزان څخه لکه: اِشتریت رطلاً عسلاً.

۲ – وروسته د هغو اسماو څخه چې په مساحت دلالت کوي لکه: اِشتریت جریباً أرضاً.

۳ – وروستہ د هغو اسماؤ چې په پیمانه او کیل دلالت کوي لکه: اِشتریت مُدّاً قمحاً.

همزه نبره: هغه همزه ده چې په وسط د کلمې کې د زیر په ډول او شکل لیکل کیږي.

۱ – که چیرته خپله همزه مکسوره وي لکه: سُئِلَ أسئلةً.

۲ – که چیرته ما قبل د همزې مکسور وي لکه: مئذنة، فئة.

**نوي لُغتونه:**

۱ – زلزال – زلزَلة. ۲– محافَظَة: ولایت. ۳ – دَمَّرَ: خراب یې کړ.

مدیریة: ولسوالي.ضَحایا: مړي. اَطناناً: ټنونه. فریقُ الانقاذ: د ژغورنې ډله.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب – تخته – د نوو کلماتو کارتونه.

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیمولو او کورنۍ دندې له کتنلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک د: عَصیر، بصل معنا ویلی شي؟<br>– څوک ویلای شي چې:( انار، زردالو او کیلې )ته په عربي کې څه وایي؟<br>– محترم ښوونکی د نوي لوست د سرلیک پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې کوي.<br>– څوک ویلی شي د ځمکي خوځیدو ته څه وایې؟<br>– محترم ښوونکی وروسته د ځواب موندلو دنوي لوست سرلیک چې ( حادِثُ زِلزَال ) دې په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي تر څو لوست په چوپتیا سره ولولي او مطالعه یې کړي.<br>– محترم ښوونکی لوست په لوړ آواز سره لولي او بیا د هرې جملې په جلا توګه معنا کوي او همدا رنګه نوي کلمات په تخته لیکي او معنا یې کوي.<br>– محترم ښوونکی د درې تنو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په سمه توګه او د حرکاتو په مراعتولو سره ولولي.<br>وروسته ښوونکی د څلورو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د لوست درې درې کرښې ولولي او د ښوونکي له طرفه ورسره مرسته کیږي، او همدا رنګه د یوه تن زده کوونکي څخه غواړي چې د لوست اوله جمله په تخته د حرکاتو سره ولیکي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکي په مناسبو ډلو ویشي تر څو لوست خپلو منځو کې تکرار کړي او وروسته د هرې ډلې څخه یو تن د ټولګي مخې ته راځي او لوست د معنا سره لولي.<br>– محترم ښوونکی ضعیفو زده کوونکو ته ډیره پاملرنه کوي تر څو لوست زده کړي او ورڅخه پوښتنې کوي او دوی ته وخت ورکوي.<br>–<br>**ارزونه:**<br>۱ – څوک د حادثُ زلزال – معنا ویلای شي؟<br>۲ – څوک د مُحافظة – مدیریة – معنا ویلای شي؟<br>۳ – څوک ویلای شي ۱۵۰۰ – ۴۰۰۰ ته په عربي کې څه وایي؟<br>محترم ښوونکی د لوست اول تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي.<br>او د تمرین دوه جملې ورته په تخته د نموني په ډول حل کوي لکه:<br>۱ – حدث زلزال في محافظة بغلان.<br>۲ – بلغَ عدد الضحایا الفاً وخمسمائة شخص. | ۳ – نعم سارعت الحکومةُ و المؤسساتُ الدولَیةُ بإرسال المَعُونات.<br>۴ – أَقامت لهم الحکومةُ الأفغانیة مُخَیَّماً. |

## لوست: دیارلسم – دویمه برخه

**سرلیک:** حادث زلزال.

**مخ:** ۷۳ – ۷٦

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – هغه افعال چې حروف علت لري وپیژني.

۲ – د همزې سره لیکل زده کړي.

۳ – محاوره او د کلماتو استعمال په جملو کې وکړای شي.

**نوي لغتونه:**

۱ – المساعدات: مرستې. ۲ – قمحاً: غنم. ۳ – شعیراً: وربشې. ۴ – فلاحاً: بزګر. ۵ – مُحافِظ: والي.

د لوست میتودونه: سوال او ځواب – یو کسیز – ډله ییز – تکرار.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی وروسته له سلام، احوال پوښتنې او کورنۍ دندې له کتنې وروسته د تیر لوست ارزونه کوي .<br>_ څوک ویلای شي – حادثُ زلزال – معنا کړي ؟<br>_ څوک ویلای شي – ولایت او ولسوالۍ ته عربي کې څه وایې؟<br>_ محترم ښوونکی د لوست دویم تمرین په دوه تنو زده کوونکو د سوال او ځواب په شکل حل کوي چې یو تن یې سوال کوي او بل یې ځواب وایې، ښوونکی ورسره مرسته کوي او جملې ورته معنا کوي.<br>محترم ښوونکی د لوست دریم تمرین په یوه تن زده کوونکي داسې حل کوي چې د ټولګي مخې ته راشي او د تمرین خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره په تخته لیکي د ښوونکي له طرفه ورسره مرسته کیږي.<br>– محترم ښوونکی د لوست د څلورم تمرین په هکله د دوو تنو زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې هغه فعلونه وښایې چې په حرف علت (ا– و –ی) سره شروع وي.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین زده کوونکو ته په تخته لیکي او هغه کلمات چې همزه نبره لري په نښه کوي او زده کوونکو ته د دې همزې په هکله معلومات ورکوي.<br>۱ –.....ئل ۲ – ئع ۳ – ئز ۵ – ئِعَ.<br>– محترم ښوونکی د لوست د شپږم تمرین د حل لپاره زده کوونکي په درې ډلو ویشي او دنده ورکوي چې خپلو کتابچو کې د تمرین خالي ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړي او وروسته د هرې ډلې په | د دریم تمرین حل:<br>۲ –......کتاباً.....<br>۲ –......طالباً.....<br>۳ –......درجة.....<br>د څلورم تمرین حل:<br>۱ –<br>۲ –<br>۳ –<br>۴ –<br>د پنځم تمرین حل:<br>۲ –........الزلزال.<br>۳ –.........وخمسمائة. |

| | | |
|---|---|---|
| | استازيتوب يو تن د ټولګي مخې ته راځي او د تمرين جملې لولي.<br>– محترم ښوونکی د لوست د اووم تمرين لپاره څلور تنه زده کوونکي د ټولګې مخې ته راغواړي چې هر يو د دوی يو کلمه په جمله کې استعمال او پر تخته يې وليکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اتم تمرين زده کوونکو ته په تخته حل کوي او د نا مرتبه کلمو څخه مفيده جمله جوړوي لکه:<br>۱ – حدثَ زلزال قوي في محافظة بغلان.<br>۲ – شكر محافظُ محافظة بغلان المؤسسات الدولية<br>۳ – كم منزلاً دُمِّرَت نتيجة الزلزال.<br>۴ – وزَّعت الحكومة الأفغانية المساعداتِ.<br>– محترم ښوونکی د لوست نهم تمرين زده کوونکو ته په لوړ آواز د معنا سره لولي.<br><br>**ارزونه:**<br>۱ – څوک ويلای شي په وَصَلَ – کې حرف علت کوم دی؟<br>۲ – څوک ويلای شي د نبرې همزه څرنګه ليکل کيږي؟<br>۳ – څوک ويلای شي ووايې چې حروف علت څو او کوم دي؟<br>محترم ښوونکی د لوست آخرنی تمرين الواجب المنزلي زده کوونکو ته کورنی دنده ورکوي او يوه جمله په تخته د نموني په ډول ليکي او لارښوونه ورته کوي چې څرنګه د زلزلې په هکله جملې وليکي. | ۴ –.........المَعُوناتِ.<br>۵ –.........تُوَزِّعُ.<br>٦ –.......ثلاثون. |

## **لوست: څوارلسم – لومړۍ برخه.**

**سرليک:** النظافةُ من الايمان.

**مخ:** ۷۷ – ۷۸

**وخت:** ۴۵ دقيقې. ( يو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ –دجمع تکسير په معنا پوه شي.

۲ –د جمع تکسير کلمې د لوست په متن کې وپيژني.

۳ –په عربي ژبه محاوره او د کلماتو استعمال په جملو کې سم وکړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات.**

**جمع تکسير:** مکسر په معنا د مات شوي ده او په اصطلاح کې هغه جمعه ده چې په دريو او له دريو څخه په زياتو دلالت کوي او جمع تکسير په تغيير د صورت مفرد او کله په تغيير د حرکاتو د مفرد سره جوړيږي لکه ( رجال ) چې د ( رجل ) جمع ده او ( مُدُن ) چې د ( مدينة ) جمع ده او ( أسُد ) چې د ( أسد ) جمع ده.

جمع تکسير په دوه ډوله ده:

۱ – جمع قلة.

۲ – جمع کثرة.

۱ – جمع قلت هغه جمع ده چې په هغه عدد دلالت کوي چې کم د دريو او زياد د لسو څخه نه وي او دا د څلورو صيغو لرونکې ده.

۱ – أفعل: لکه . شهاب، أشهب. رجل، أرجل. عين. أعين.

۲ – أفعلة: لکه: عذاء. أغذية. دواء: أدوية. طعام: أطعمة.

۳ – فعلة: لکه: غلام، غلمة، صبي: صبية، فتى: فتية.

۴ – أفعال: لکه: عنب: أعناب. عنق: أعناق. عم: أعمام.

۲ – جمع کسرت: هغه جمع ده چې په دريو او يا زياد له دريو څخه دلالت کوي او دا د أتلسو صيغو لرونکې ده لکه: أسمر: سمراء. غرفة: غرف. بدعة: بدع. مريض: مرضى، حارس: حراس. غلام: غلمان، غنى. اغنياء.

همزه په اخر د کلمې کې يا همزه متطرفه: هغې همزې ته وايې چې په آخر د کلمې کې وليکل شي. متطرفه همزه په لاندې توګه ليکل کيږي.

۱ – د ( يا ء ) د پاسه په هغه وخت کې چې ما قبل د همزې زير وي لکه: قُرِئَ. مبتدئ.

۲ – د ( واو ) د پاسه په هغه وخت کې چې ما قبل د همزې پيښ وي لکه جَرُءَ، اللؤلؤ.

۳ – د الف د پاسه په هغه وخت کې چې ما قبل د همزې زور وي لکه: خطأ، قرأ.

**نوي لغتونه:**

۱ – النظافة –پاکي. ۲ – يَحُثُّ: هڅوي. ۳ – الطُّهور: پاکي. ۴ – شطر – برخه. ۵ – بُيُوتنا: زمونږ کورونه – ٦ – الطرقُ: لاري – ۷ – مکشوفة: لوڅ.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب: تکرار – يو کسيز – ډله ييز – او په چوپتيا سره لوستل .

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب – تخته – تباشير – د کلماتو کارتونه.

د لوست بهیر

| د زده کوونکي فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| | محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې او د کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>_ څوک د حدَثَ زلزلزال – معنا ویلی شي؟<br>– څوک ویلای شي ولایت او ولسوالۍ ته په عربي کې څه وایي؟<br>– محترم ښوونکی د نوي لوست د سرلیک پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتني کوي.<br>څوک ویلای شي د اسلام دین د پاکۍ په هکله څه ویلي دي؟<br>څوک د نظافت او پاکۍ ګټې ویلای شي؟<br>– محترم ښوونکی وروسته د ځواب موندلو نه د نوي لوست سرلیک چې ( النظافة من الایمان ) دی په تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپلو کتابونو ته متوجه شي او لوست په چوپتیا سره ولولي.<br>– محترم ښوونکی لوست په لوړ اواز سره لولي او وروسته د یوه تن زده کوونکي څخه غواړي چې لوست ولولي .<br>– محترم ښوونکی د لوست نوي کلمات په تخته د معنا سره لیکي او د لوست یوه یوه جمله په جلا توګه معنا کوي او وروسته د درې تنو زده کوونکو څخه غواړي چې هر یو د لوست څلور کرښې د معنا سره ولولي.<br>– محترم ښوونکی د یوه تن زده کوونکي څخه د لوست د مشکلو کلمو د معنا پوښتنه کوي او همدا رنګه د یوه تن څخه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د حدیث پوښتنه کوي چې د پاکۍ په باره کې یې ویلی دي.<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته د جمع تکسیر په هکله لازمې معلومات ورکوي او د جمع تکسیر کلمات په لوست کې ورته ښیي او له ضعیفو زده کوونکو څخه د لوست پوښتنه کوي او هغوی ته پوره پاملرنه کوي چې لوست یاد کړي.<br><br>**ارزونه:**<br>۱ – څوک د ( النظافة من الایمان ) معنا کولای شي؟<br>۲ – څوک د نظافت په هکله حدیث شریف ویلای شي؟<br>۳ – څوک د اَطعِمَة مکشوفة معنا ویلای شي؟<br>– محترم ښوونکی له ټولو زده کوونکو څخه غواړي چې نوموړی حدیث شریف په یادو زده کړي او د لوست اول تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي او دوه جملې یې د نمونې په ډول په تخته ورته حل کوي لکه:<br>۱ – نعم یَحُثُ الاسلام علی النظافة.<br>۲ – یجبُ ان نشارکَ زُملاءَنا في اَلمحافظةِ علی نظافة الفصل و المدرسة و نقوم بتنظیف غُرفتنا. | ۵ دقیقي |

## لوست: څوارلسم - دویمه برخه

**سرلیک:** النظافة من الایمان.

**مخ:** ۷۸ – ۸۲

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت ).

**ښوونکي ته اضافي معلومات.**

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ –د ( نا ) ضمیر د جمع تکسیر سره گردان کړای شي.

۲ – د کلمې په آخر کې د همزه لیکل زده کړي.

۳ –محاوره او دکلماتو استعمال په جملو کې وکړای شي.

**نوي لغتونه:**

۱ – الفصل – ټولگی. ۲ – المواطنین: هیوادوال. ۳ – البیئةُ: چاپیریال.

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – یو کسیز – ډله ییز – تکرار.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب – تخته – تباشیر – د کلماتو کارتونه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی وروسته له سلام، احوال پوښتنې د ټولگي نظم د حاضرۍ اخیستل او کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>_ څوک د حدیث شریف ( الطهور شطر الایمان ) معنا ویلای شي؟<br>محترم ښوونکی د لوست دویم تمرین په دوو تنو زده کوونکو د سوال او ځواب په شکل د کتاب له مخې لولي او وروسته ښوونکی د جملو معنا کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست دریم تمرین په تخته حل کوي او زده کوونکو ته د جمع تکسیر کلمې ښايي لکه: ۱ – الحُجاجُ ۲–مناسک ۳– اللحُومُ ۴– الأمراض۵ – علماءُ ٦– الرُسلُ – ۷مقاعدُ ۸– الاثوابُ<br>– محترم ښوونکی د لوست څلورم تمرین په درې تنو زده کوونکو داسې حل کوي چې هر یو د جمع تکسیر دوه جملې د ( نا ) ضمیر سره یو ځای کړي او په تخته یې ولیکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین د حل کولو لپاره دوه تنه زده کوونکي د ټولگي مخې ته راغواړي چې د جملو خالي ځایونه په همزې طرف سره ډک کړي او په تخته یې ولیکي، ښوونکی ورسره مرسته کوي. | د دریم تمرین حل:<br>ملابسنا – بیوتنا<br>مدارسنا – اظفارنا<br>بلادنا.<br>د پنځم تمرین حل:<br>۱ – یلتجئُ<br>۲ – شاطئ.<br>۳ – المبتدئ.<br><br>د شپږم تمرین حل:<br>۲ – طعام ۳ – لباس. ۴ – بیت ۵ – طریق. ٦ – ساکن. ۷ – زمیل. ۸ – مکان. ۹ |

| | | |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین په زده کوونکو په ډله ییز شکل حل کوي زده کوونکي په مناسبو ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې خپلو کتابچو کې د جمع تکسیر د کلمو مفرد ولیکي چې وروسته ښوونکی د هرې ډلې کار ګوري غلطي یې اصلاح کوي.<br>– محترم ښوونکی اووم تمرین داسې حل کوي، پنځه تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي چې هر زده کوونکی یوه مفیده جمله د لیکل شوو کلماتو څخه جوړه او په تخته ولیکي.<br>– محترم ښوونکی د اتم تمرین کلمات په مناسب آواز سره لولي او معنا یې په تخته لیکي او وروسته د یوه تن زده کوونکي څخه غواړي چې دغه کلمات د معنا سره ولولي.<br><br>**ارزونه:**<br>۱ – څوک د لباس جمع ویلای شي؟<br>۲ – څوک د اَظفار مفرد ویلای شي؟<br>۳ – څوک د النظافة من الایمان – معنا ویلای شي؟ | کرسي. ۱۰ – ظفر. ۱۱ – مدرسة. ۱۲ – مرض. ۱۳ – مال.<br>د اووم تمرین حل:<br>۱ – النظافة من الایمان.<br>۲ – یحث الاسلام علی النظافة.<br>۳ – نأكلُ اطعمة نظيفة.<br>۴ – يَجِبُ ان نهتم بنظافة البلد.<br>۵ – علينا أن نساعد الحكومةَ. |

## لوست: پنځلسم – لومړی برخه.

**سرليک:** فُصُولُ السنة.

**مخ:** ۸۳ – ۸۴

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – د اسم تفضيل په معنا سم پوه شي.

۲ – د لوست په متن کې اسم تفضيل وپيژني.

۳ – لوستل – ليکل او محاوره وکړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

اِسم تفضيل: يو مشتق اسم دی په وزن د ( أفعل ) چې غالباً په هغو دوو شيانو دلالت کوي چې په معنا کې مشترک وي په داسې ډول چې د يوه صفت په بل باندې په معنا کې زياد وي لکه: عليّ أجمل من زيد.

علي أعلم من زيد. په دې دوو مثالونو کې ( أجمل ) ( أعلم ) په دې دلالت کوي چې د جمال او علم صفت په علي کې د زيد څخه زياد ده.

د اسم تفضيل وزن: اسم تفضيل يو وزن لري د ( أفعل ) چې مؤنث يې ( فعلى ) ده لکه: أصغر، صغرى، أكبر، كبرى، أعظم، عظمى.

اسم تفضيل: فعلى مصدر چې معنا يې قابل د تفاضل وي په دې شرط چې فعل ثلاثي تام متصرف مبني لپاره د معلوم او مثبت وي.

اسم تفضيل څلور حالته لري:

۱ – مجرد او خالي د ( ال ) څخه لکه: زيد أجمل من سعيد.

۲ – مقترن او پيوست په ( أل ) لکه: هو الأفضل و هي الفضلى.

۳ – مضاف نکرې ته لکه: هذا أجمل رجل. الكتاب أفضل صديق.

۴ – مضاف معرفې ته لکه: الوالدان أفضل الناس يا أفضلا الناس.

**نوي لغتونه:**

۱ – فصول – فصلونه. ۲ – السَّنةُ: کال. ۳ – تَذوبُ: ويلي کيږي. ۴ – الثلوجُ: واوري. ۵ – يَغرسُ: بُوټي نيالونه کېنبودل. ٦ – تَنضِجُ: پخيږي.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب – تکرار – يو کسيز – ډله ييز – په چوپتيا سره مطالعه.

**د لوست مرستندويه توکي:** کتاب – تخته – تباشير – د کلماتو کارتونه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، او د کورنۍ دندې له کتنې څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک د طرق – مفرد ویلای شي؟<br>– څوک ویلای شي ملګرو ته عربي کې څه وایې؟<br>– محترم ښوونکی د نوي لوست د سرلیک پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې کوي؟<br>– محترم ښوونکی وروسته د څواب موندلو نه د نوي لوست سرلیک چې ( فصول السنة ) دی په تخته لیکي او زده کوونکو ته هدایت ورکوي چې خپلو کتابونو ته متوجه شي او لوست په چوپتیا سره ولولي او مطالعه یې کړي<br>– محترم ښوونکی لوست په مناسب آواز سره لولي او معنا کوي یې او مشکل کلمات په تخته د معنا سره لیکي.<br>– محترم ښوونکی له دریو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست د معنا سره په لوړ آواز ولولي.<br>– محترم ښوونکی یو تن زده کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي چې د کال د څلورو فصلو نومونه په عربي ژبه په تخته ولیکي.<br>– محترم ښوونکی څلور تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او لارښوونه ورته کوي چې هر یو زده کوونکی د یوه فصل په هکله د کتاب له مخې جملې ولولي او معنا یې کړي.<br>– محترم ښوونکی یو تن زده کوونکی راغواړي چې د لوست په اړه اوله جمله په تخته ولیکي.<br>– محترم ښوونکی د ضعیفو زده کوونکو څخه د لوست پوښتنه کوي او مرسته ورسره کوي<br><br>**ارزونه:**<br>۱ – څوک د: فصول السنة معنا ویلای شي؟<br>۲ – څوک د کال د څلورو فصلو نومونه په عربي ویلای شي؟<br>۳ – څوک د یغرسُ – تُغَرِّدُ – معنا ویلای شي؟<br>محترم ښوونکی د لوست اَول تمرین زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او دوه جملې د نمونې په ډول ورته په ټولګي کې حلوي.<br>۱ – في السنة أربعة فصول.<br>۲ – تتفتحُ الزهور في فصل الربیع. | ۳ – یکون الجو في الصیف حارّاً.<br>۴ – یستعد الناس لاستقبال الشتاء في فصل الخریف.<br>۵ – تتساقط الثلوج في فصل الشتاء. |

## لوست: پنځلسم – دویمه برخه

**سرلیک:** فصول السنة.

**مخ:** ۸۵ – ۸۸

**وخت:** ۴۵ دقیقی ( یو درسي ساعت ).

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

۱ – اسم تفضیل په جملو کې استعمال کړای شي.

۲ – د نبره همزې د کلمو په منځ کې لیکل زده کړي.

۳ – محاوره او د کلماتو استعمال په جملو کې وکړای شي.

۴ – محاوره – لیکل – لوستل وکړای شي.

**نوي لغتونه:**

اَجمل: ډیر ښایسته. اَبرد: ډیر یخ. تَتَفَتَحُ: غوړیږي.

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – یو کسیز – ډله ییزه – تکرار.

**د لوست مرستندویه توکي:** کتاب – تخته – تباشیر.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعتالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقي | محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم، حاضرۍ اخیستلو او کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک د: (أجملَ – أبردَ ) معنا ویلای شي؟<br>– څوک ویلای شي واوري او ګلانو ته عربي کې څه وایې؟ | |
| ۲۵ دقیقي | – محترم ښوونکی د لوست دویم تمرین په دوه تنو زده کوونکو د سوال او ځواب په شکل د کتاب له مخې لولي او وروسته ښوونکی دغه جملې ورته معنا کوي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې دغه جملې په یادو زده کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست دریم تمرین زده کوونکو ته په تخته حل کوي او د تمرین په خالي ځایونو کې مناسبې کلمې لیکي لکه:<br>۲ – أکثر، ۳ – أقلُّ، ۴ – أبردُ.<br>محترم ښوونکی څلورم تمرین زده کوونکو ته دنده ورکوي چې خپلو کتابچو کې فعل مضارع ولیکي او وروسته د ښوونکي له خوا د دوی کتابچې کتل کیږي، که غلطي ولري هغه اصلاح کوي.<br>محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین زده کوونکو ته په تخته حل کوي او د نبره همزې لیکل چې کله مفتوحه وي او مخکې ورڅخه کسره وي | د څلورم تمرین حل:<br>۱ – یصبحُ. ۲– تغردُ.<br>۳ – یحرثُ. ۴ – ترتفعُ.<br>۵ – تصفرُ. ٦ – یلبسُ.<br><br>د پنځم تمرین حل:<br>۲ – الشتاءُ. |

| | | |
|---|---|---|
| ښايي لکه:<br>۱ – التهنئةُ. ۲ – هادئة. ۳ – ناشئة.<br>محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرين داسې حل کوي.<br>زده کوونکي په مناسبو ډلو ويشي تر څو د جملو ځايونه په مناسبو کلمو سره ډک کړي او کتابچو کې يې وليکي چې وروسته د ښوونکي له خوا کتل کيږي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرين په شپږو تنو زده کوونکو داسې حل کوي چې هر يو د ټولګي په تخته يوه کلمه په مناسبه جمله کې استعمال کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اتم تمرين په زده کوونکو داسې حل کوي چې د اوو تنو زده کوونکو څخه د يوې يوې کلمې د ځواب پوښتنه کوي او هغوی يې ځوابونه وايي<br>– محترم ښوونکی د لوست نهم تمرين زده کوونکو ته په تخته حل کوي او د کلماتو څخه مفيده جملې جوړوي لکه:<br>۱ – ترتفع درجة الحرارة في الصيف.<br>۲ – في فصل الصيف تنضج الثمار.<br>۳ – يستعد الناس لاستقبال الشتاء.<br>۴ – يلبس الناس الملابس الشتوية.<br>۵ – يستعمل الناس وسائل التدفئة شتاءً.<br><br>**ارزونه:**<br>۱ – څوک د ( اَجمل – اَبرد ) معنا ويلای شي؟<br>۲ – څوک ويلای شي ژمي – مني ته عربي کې څه وايي؟<br>۳ – څوک د: تتساقطُ الثلوجُ – معنا ويلای شي؟<br>محترم ښوونکی د لوست آخری تمرين الواجب المنزلي زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او دوه کرښې د مثال په ډول په تخته ورته ليکي او لارښوونه ورته کوي | ۳ – الخريفُ<br><br>د شپږم تمرين حل:<br>۱ – اَجملُ. ۲ – تُغردُ.<br>۳ – درجة. ۴ – الناسُ.<br>۵ – التدرجُ. ٦ – يبرُدُ.<br><br>د اووم تمرين حل:<br>اَكبرُ – اَبردُ – اكثرُ – اَقلُّ<br>اَطولُ – اَصغرُ. |

## لوست: شپاړسم ( لومړۍ برخه )

**سر لیک:** الواجبات الیومیة للتلمیذ.

**مخ:** ۸۹ – ۹۱

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکی باید:

۱ – لوست په سمه توګه ولولي.

۲ – د لوست نوي لغتونه په توره تخته ولیکي او معنا یې کړي.

۳ – باید متضادې کلمې و پیژني او ولیکي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د فعل د تقسیماتو څخه یو تقسیم یې لازم او متعدي ته ده.

۱ – لازمي فعل: هغه فعل دی چې تنها فاعل ته ضرورت لري تر څو معنا یې مکمله شي لکه: ذهب محمد ( محمد لاړ ) دتللو عمل د محمد په موجودیت سره پوره او محقق شو چې معنا یې مکمله ده.

۲ – متعدي فعل هغه فعل دی چې علاوه په فاعل مفعول هم غواړي تر څو معنا یې مکمله شي لکه: نَصَرَ علي زیداً. ( علي زید سره مرسته وکړه ). د مرستې عمل چې د علي په واسطه تر سره شو پرته د زید له موجودیت څخه نه ترسره کیږي. او معنا یې کامله نه ده.

**نوي لغتونه:** مُبکراً ( د وخته ) اَتَناوَلُ ( خورم ) اَستَعِدُّ ( تیاری نیسم )

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب، په یو کسیز او دوه کسیزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د سلام احوال پوښتني، د کورنۍ دندي له کتلو وروسته د تیر درس ارزونه کوي.<br>– څوک ویلای شي چې ژمی – دوبې او منې ته په عربي ژبه کې څه وایې؟<br>– د نوي لوست د سرلیک پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتني.<br>– څوک ویلای شي چې یو زده کوونکی په ښوونځي کې څه دنده لري.<br>– محترم ښوونکی د ځوابونو وروسته د نوي لوست سرلیک چې ( الواجبات الیومیة للتلمیذ ) دی په تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې نوی لوست په چوپتیا سره ولولي او په کوم ځای چې نه پوهیږي له ښوونکي څخه دې پوښتنه وکړي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی نوی لوست په څو تنو زده کوونکو چې لوست په سمه توګه لوستلی شي لولي او په خپله هم ورسره مرسته کوي او بیا په خپله نوی لوست یو وار په مناسب آواز لولي او معنا کوي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې سخت لغتونه نور د ځان سره یاد داشت کړي او بیا هغه په تخته ولیکي او معنا یې کړي بیا هم ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین چې یواځې د جملې مخې ته صحیح او غلطي کرښې ایښودل دي په زده کوونکو عملي کار کوي او د تمرین په حل کولو کې ورسره مرسته کوي، وروسته لدې ښوونکی دویم تمرین چې سوال او ځواب دی په زده کوونکو لولي او معنا کوي یې. | |
| ۱ – ✓ – ۲ × – ۳ ✓<br>۴ – × – ۵ ✓– ۶ ×<br>۷ – ✓ ۸ – × | **ارزونه:**<br>۱ – څوک د لوست څلور کرښې لولي او معنا کوي؟<br>۲ – څوک د دغو لغتونو معنا ویلای شي؟<br>۳ – څوک د یو زده کوونکي مسؤلیتونه ویلی شي؟<br>کورنۍ دنده: محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست دریم تمرین چې د مضارع فعلونو په ګوته کول دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>۱ – اَستیقِظُ – اقرأُ – اتناوَلُ. | |

**لوست: شپاړسم (دویمه برخه)**

**سرلیک:** الواجباتُ الیومیةُ للتملیذِ.

**مخ:** ۹۲ – ۹۴

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکی باید:

۱ – مفعول په جملو کې وپیژني.

۲ – د مضارع فعل د صیغې چې مفرد ( متکلم ته راځي ) په جملوکې وپیژني او ولیکي.

**نوي لغتونه:** اُحِلُّ ( حل کووم ) اُراجِعُ ( مراجعه کوم ) مبنی ( ودانی ) .

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – دوه کسیز او په ډله ییزه توګه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام احوال پوښتنې او دکورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک دغه جمله معنا کولای شي ( العَبُ کرةَ القدمِ بعد صلاة العصر.<br>– محترم ښوونکی د لوست څلورم تمرین په زده کوونکو لولي او معنا کوي وروسته په جملو کې مفعول زده کوونکو ته ښایي او د تمرین جملې تجزیه کوي چې زده کوونکي په سمه توګه پوه شي ( صلّی – فعل ) احمد ( فاعل ) الفجرَ: مفعول به.<br>– محترم ښوونکی پنځم تمرین په زده کوونکو باندي په تخته لیکي او له هغې وروسته تش ځایونه یې په څو تنو نورو زده کوونکو ډکوي او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– ښوونکی شپږم تمرین په زده کوونکو باندي داسي عملي کوي چې د الف قطار کلمې په څو تنو نورو زده کوونکو لیکي او بیا د دریمې ډلي له زده کوونکو څخه غواړي چې: د لومړي قطار د کلمو ضد په دویم قطار کي شته دی هغه ولټوي او د لومړي قطار مخ ته یې ولیکي او ښوونکی ورسره مرسته کوي<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرین په زده کوونکو په چوپتیا سره لولي او په خپله یې معنا کوي او بیا هره جمله په وار سره په زده کوونکو لولي او معنا یې کوي او ښوونکی ورسره مرسته کوي. | د څلورم تمرین حل:<br>۲ – القران – ۳ – الحافلة<br>۴ – کرةُ القدمِ.<br>۵ – الفطورُ.<br>د پنځم تمرین حل:<br>۱ – بریئاً – ۲ لؤلؤاً.<br>۳ – ماءً. ۴ – نباً.<br>مساءً.<br>د شپږم تمرین حل:<br>۲ – اُدخُل ۳ – اِنزِل.<br>۴ – اَنامُ. ۵ – المساءُ.<br>٦ – کثیر.<br>د اَتم تمرین حل:<br>کرةُ الطائرة –و الیبال. |

| | | |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی د لوست اتم تمرين چې د لمانځه نومونه او ختونه دي لولي او معنا يې کوي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی لاربښوونه کوي چې زده کوونکی پنځه جملې د خپلو ورځنيو فعاليتونو په باره کې په عربي کې وليکي، او ښوونکی ورسره مرسته کوي. | المعهدُ: انستيتوت.<br>الشاحنةُ: بار وړونکی موټر |

## لوست: اوولسم ( لومړی برخه )

**سر لیک:** الراعي و اَهلُ القريةِ.

**مخ:** ۹۵ – ۹۷

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکی باید:

۱ – لوست په سمه توګه ولولي.

۲ – باید د لوست نوي لغتونه په توره تخته د معنا سره ولیکي.

۳ – د لوست د جملو په معنا پوه شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

فعل د اصلي حروفو له نظره دوه ډوله دی: صحیح او معتل. صحیح فعل: هغه فعل دی چې په اصلې حروفو کې علت موجود نوي.

صحیح فعل په درې قسمه دی:

۱ – سالم: هغه فعل دی چې په اصلي حروفو کې یې حرف علت، همزه، تضعیف نه وي. لکه: ذهب، شرب، دخل.

۲ – مهموز: هغه فعل دی چې په اصلي حروفو کې یې همزه وي لکه: أمر، سأل، قرأ.

۳ – مضاعف: هغه فعل دی چې دوه اصلي حروف یې یو شانته وي لکه: مدَدَ. ذَلل.

۲ – معتل فعل: هغه فعل دی چې په اصلي حروفو کې یې حرف علت وي او حروف علت عبارت دي له: واو، الف، یاء څخه.

معتل فعل په څلور ډوله دی:

۱ – مثال: کوم وخت چې د علت توری په کلمه کې د فاء د تورې په مقابل کې راشي مثال ورته وایې لکه: وهَبَ، وَرِثَ، وَجَدَ.

۲ – أجوف: کله چې په کلمه کې د علت توری د عین د تورې په مقابل کې راشي نو اجوف ورته ویل کیږي لکه: قول – بیع.

۳ – ناقص: کله چې په کلمه کې د علت توری د لام د تورې په مقابل کې راشي نو ناقص ورته ویل کیږي لکه: رمی – د عو.

۴ – لفیف: لکه: وصی – قوی.

کان: ناسخ اوناقص فعل دی کله چې په مبتدأ او خبر داخل شي نو مبتدأ مرفوع کوي چې اسم د کان ورته وایې او خبر منصوبوي چې خبر ورته د کان ورته وایې.

لکه: الجوُ جمیل – کان الجو جمیلاً – په دې مثال کې کلمه د ( الجو ) اسم د کان او مرفوع ده او کلمه د ( جمیلاً ) خبر د کان او منصوب ده.

**نوي لغتونه:** یرعی ( څرول یې ) اغنام ( پسونه ) الخروف ( ورى ).

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – یو کسیز او په دوه کسیزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:** په چوپتیا سره لوستل.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br><br>۲۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– ځوک د دغو کلمو ضد لیکلی شي ( قلیل – ارکب اخرج ).<br>– د نوي لوست د عنوان پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتني.<br>– چا د شپون او لیوه قصه اوریدلې ده؟<br>محترم ښوونکی د ځوابونو وروسته د نوي لوست عنوان چې ( الراعي و اهل القریة ) دی په ښه خط په توره تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې اوولسم لوست په چوپتیا سره ولولي نوي لغتونه د ځان سره یاد داشت کړي.<br>محترم ښوونکی نوی لوست د بسم الله الرحمن الرحیم په ویلو په مناسب آواز لولي او معنا کوي البته ښوونکی باید لوست دوه ځلې ولولي او معنا کړي تر څو زده کوونکي په سمه توګه پوه شي.<br>محترم ښوونکی نوی لوست په څو تنو زده کوونکو لولي او معنا کوي یې او وروسته نوی لوست په څو تنو زده کوونکو په تخته لیکي او معنا کوي یې او ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي.<br>محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین چې سوالونه دي په زده کوونکو لولي او د لوست له مخې یې د سوالونو ځوابونه ورکول دي په زده کوونکو عملي کوي او خپله پوره مرسته کوي.<br>محترم ښوونکی دویم او دریم تمرین په عملي توګه په زده کوونکو لولي او مرسته ورسره کوي، دویم تمرین د صحیح او غلطو جملو پیدا کول او دریم تمرین د سوال او ځواب په ډول دي.<br><br>**ارزونه:**<br>۱ – څوک د درس دوه جملې لوستلی او معنا کولی شي؟<br>۲ – څوک د لوست نوي لغتونه لیکلی شي؟<br>۳ – څوک د درواغو په هکله خبري کولی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي د لوست څلورم تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي چې ( کان ) د جملو په سر کې راځي: کان اللهُ عادلاً – کان احمدُ طالباً في المدرسة، کانَ الجوُبارداً.<br>کان الحقُ واضحاً، کانَ الجبلُ مرتفعاً. | د لومړي تمرین حل:<br>۱ – کان بسام یرعی اغنامَهُ<br>۲ – ففکر فیما یصنعُ.<br>۳ – اسرعوا نجدته.<br>۴ – لقد کذبتُ علیکم.<br>۵ – لا، اِنّهُ کَذّاب. |

## لوست: اوولسم ( دويمه برخه )

**سرليک:** الراعي و اهل القريةِ.

**مخ:** ۹۸ – ۱۰۰

**وخت:** ۴۵ دقيقې ( يو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – د ( کان ) حرف و پېژني.

۲ – د همزه ليکل د کلمو په منځ کې سم زده کړي.

۳ – د صحيح او معتل فعلونو په معنا پوه شي.

**نوي لغتونه:** الوادي ( دره ) نجدة ( مرسته ) الحصان ( آس ).

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب – دوه کسيز او په ډله ييزه توګه –

**د لوست مرستندويه توکي:**

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی د سلام احوال پوښتني، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تير درس ارزونه کوي.<br>– څوک د ( کان ) حرف په جمله کې کارولی شي؟<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د کتاب ( ۹۸ ) مخ خلاص کړي او د لوست پنځم تمرين خپل ځان سره په چوپتيا سره ولولي او د هغه څخه فعل ( صحيح سالم ) راوباسي او د ځان سره يې ياد داشت کړي او بيا دغه فعلونه په تخته وليکي، او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرين په زده کوونکو باندې په تخته ليکي او تش ځايونه يې چې په همزه باندې ډکول دي عملي په تخته کار کوي او مرسته ورسره کوي.<br>– محترم ښوونکی بيا هم د لوست اووم تمرين په زده کوونک باندې په ډله ييزه توګه عملي کار کوي اوتش ځايونه يې په مناسبو کلمو چې په چوکاټ کې شته دی ډکوي.<br>– محترم ښوونکی دې د لوست اتم تمرين چې الثروة اللغوية دی په زده کوونکو لولي او بيا يې په خپله هم لولي او معنا کوي يې چې په تمرين کې ټول د حيواناتو نومونه ذکر شويدي. | د پنځم تمرين حل:<br>جَلَسَ – صَعِدَ – صَرَخَ – سمعَ – ترکَ.<br><br>د شپږم تمرين حل:<br>۱ – بِئسَ. ۲ – البئرُ. ۳ – هذه البئرُ. ۴ ، بئس القرين.<br>زده کوونکي ليکي: د اووم تمرين حل:<br>۲ – شجرة،۳ – فوق، ۴ – القريةُ، ۵ – غاضبين.<br>۶ – الذئبُ. |

| | | |
|---|---|---|
| | الخروف ( ورى ) الاسد ( زمرى ) الحصان ( آس)الارنبُ ( سوي ) الكلبُ ( سپی ) الثورُ ( غوايې ) النمرُ ( پړانګ ) الحمارُ ( خر ) الثعلبُ (ګیدړ ) الدُبُ ( يږ ) الغزال ( هوسۍ ) القردُ ( بيزو) العنزُ ( وزه ) الحيةُ ( مار ).<br><br>**کورنۍ دنده:** محترم ښوونکی لاړښوونه کوي چې زده کوونکي د لوست الواجب المنزلي چې د جملو ترتيبول دي په خپلو کتابچو کې ليکي، د بيلګي په توګه:<br>١ – لماذا لا امزَحُ مع اهل القريةِ.<br>٢ – اَنقِذوني يا اَهل القريةِ.<br>٣ – اَكلَ الذئبُ الاغنامَ. | |

## لوست: اتلسم ( لومړۍ برخه )

**سر لیک:** الاسنان.

**مخ:** ۱۰۱ – ۱۰۳

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – لوست سم ولولي او معنا یې کړي.

۲ – مفرد د کلمې په جمع بدل کړي.

۳ – همزه په کلمو کې وښایې او وپیژني.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

( کی ) مصدري د نصب او استقبال حرف دی، فعل مضارع ته نصب ورکوي لکه: مارسِ الریاضةَ کی یطولَ عمرکَ. أذهبُ الِی طبیب الأسنان کی ینظفَ أسنانی.

( أن ) مصدري د نصب او اِستقبال حرف دی د مضارع په فعل داخلیږي او منصوبوي یې. لکه اریدُ أن أتعلمَ – أریدُ أن أذهبَ.

**نوي لغتونه:** الاسنانُ ( غاښونه ) سواک ( مسواک ).

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – یو کسیز او په چوپتیا سره لوستل.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر :**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، دکورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي:<br>– څوک دغه جمله ترتیبولی شي؟<br>الاغنامُ، جاءَ، الذئبُ، و اَکلَ.<br>– د نوي لوست د عنوان د پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې.<br>– څوک ویلای شي چې په عربي کې غاښونو ته څه وایې؟<br>– محترم ښوونکی د ځوابونو وروسته د نوي لوست عنوان چې ( الاسنان ) دی په ښه خط په توره تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپل کتابونه خلاص کړي او اتلسم لوست په چوپتیا سره ولولي او نوي لغتونه د ځان سره یاد داشت کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په څو تنو زده کوونکو چې لوستلی یې شي لولي او مرسته ورسره کوي او د زده کوونکو د لوستلو وروسته محترم ښوونکی د بسم الله په ویلو سره نوی لوست په مناسب آواز لولي او معنا کوي یې چې د زده کوونکو غلطي ګاني | |

اصلاح شي.

- محترم ښوونکی له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او نوي لغتونه د معنا سره ولیکي او مرسته ورسره کوي

- محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین چې د جملي مخې ته صحیح علامه ایښودل دي په زده کوونکو لولي او علامې د دوی په واسطه ږدي او مرسته ورسره کوي او بیا دویم تمرین چې د سوال او ځواب په توګه په کتاب کي راغلی دی په زده کوونکو په وار سره لولي او کمزورو زده کوونکو ته ډیره پاملرنه کوي.

**ارزونه:**

- څوک د لوست دری کرښې ویلی او معنا کولی شي؟

څوک د لوست نوي لغتونه په تخته لیکلی شي؟

څوک د غاښونو په اړه خبري کولی شي؟

**کورنۍ دنده:** محترم ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي د لوست دریم تمرین چې تش ځایونه یې په ( کَی، اَن ) ډکیږي په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۲ – کی – ۳ – کی ۴ – کی – اَن – ٦ – اَن.

**د دویم تمرین حل:**

۱ – ما هي وظیفة الاَسنانِ؟

ج – وظیفة الاسنانَ مضغ الطعامِ.

## **لوست: اتلسم ( دویمه برخه )**

**سرلیک:** الاسنان.

**مخ:** ۱۰۴ – ۱۰۶

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسی ساعت )

**موخې:**

زده کوونکی باید:

۱ – هغه همزه چې د کلمې په اخر کې راځي وپیژني.

۲ – د: کی، او: اَن، د حروفو په معنا پوه شي.

۳ – مفرد اسم په جمع سالم بدل کړي.

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – دوه کسیز او په ډله ییزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د سلام احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د دغې پوښتنې ځواب په عربي کې ویلې شي؟<br>– متی تنظفُ اسنانک؟<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د کتاب ۱۰۴ مخ خلاص کړي او څلورم تمرین د ځان سره ولولي او مفردې کلمې په وار سره ولولي.<br>– محترم ښوونکی پنځم تمرین په وار په زده کوونکو باندې په تخته لیکي او بیا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې هغه کلمه چې په آخر کې یې همزه شته د جملو څخه جلا او په تخته ولیکي او هغه بیا ولولي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین چې بیا هم د تشو ځایونو ډکول دي د کتاب له مخې په زده کوونکو لولي او تش ځایونه یې په هغوی باندې ډکوي او مرسته ورسره کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرین چې غیر مرتبو کلماتو څخه مرتبې جملې جوړول دي په زده کوونکي عملي کار کوي پداسې شکل چې یوه جمله د مثال په توګه د تختې پر مخ ترتیب کوي او نور یې زده کوونکو ته پریږدي، چې په ځانګړې او ډله ییزه توګه کار وکړي کوم ګروپ چې کار مخ کې خلاص کړي د زده | د څلورم تمرین حل:<br>۲ – المشروبات.<br>۳ – ارشادات. ۴ – الفضلات.<br>۵ – السیارات – ٦ عیادات.<br>د پنځم تمرین حل :<br>ضوء – الاصدقاءُ – السوءُ – الاشیاءُ.<br><br>زده کوونکي شپږم تمرین لولي او تش ځایونه ډکوي:<br>۱ – السواک ۲ – العلبةُ.<br>۳ – وجبة. ۴ – عیادة.<br>۵ – الطبیبُ.<br>د اووم تمرین حل:<br>۲ – لاندخلُ الاشیاءَ الحادة في الاسنان.<br>۳ – ننظفُ اسناننا بالفرشاة و المعجون.<br>۴ – ننظف اسناننا بعد الاکل. |

| ٥ – نشعر بالم في اسناننا.<br>٦ – نذهب الى طبيب الاسنان. | کوونکو په وړاندي یې تشویقوي.<br>الاسنان جزء هامّ من جسمنا.<br>– محترم ښوونکی د لوست اتم تمرین لولي او زده کوونکو ته یې معنا کوي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست ( الواجبُ المنزلي ) په خپلو کتابچو کې ولیکي او مفردي کلمې په جمع بدل یې کړي البته – جمع مؤنث سالم د مثال په توګه – معلمات – طبیبات | |
|---|---|---|

## لوست: نولسم ( لومړۍ برخه )

**سر لیک:** الصیادُ و الغزالةُ.

**مخ:** ۱۰۷ – ۱۰۹

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – لوست په سمه توګه ولولي او معنا یې کړي.

۲ – نوي لغتونه د معنا سره په تخته ولیکي.

۳ – د لوست سوالونو ته سم ځوابونه ووایې.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

ثلاثي مجرد فعل: هغه فعل ته وایې چې د درې اصلي حرفونو څخه جوړ شوي وي چې أصلي حروفو کې نور حرفونه اضافه نه شي او د صرف په اصطلاح کې لومړي حرف ته ( فاء ) دویم ته عین او دریم ته لام د کلمې وایې لکه: ذهبَ، کتبَ، نصرَ.

**نوي لغتونه:** الرصاصةُ ( مرمۍ ). یزعجُ ( مزاحم کیږي ). انتبهَ ( متوجه شو )

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب، یو کسیز او په چوپتیا سره لوستل.

**د لوست مرستندویه توکي :**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د دغو مفردو نومونو جمع مؤنث سالم لیکلی شي ( مسلمة – طبیبة – زجاجة )<br>– د نوي لوست د عنوان پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې.<br>– څوک ویلای شي چې ښکاري او هوسۍ ته په عربي ژبه کې څه وایې ؟<br>– محترم ښوونکی وروسته د ځوابونو څخه د نوي لوست عنوان چې ( الصیادُ و الغزالةُ ) دی په توره تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپل کتابونه خلاص کړي او نولسم لوست ته ښه ځیر شي او د ځان سره یې ولولي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست د بسم الله په ویلو په مناسب آواز دوه ځلې لولي او معنا کوي یې وروسته زده کوونکي لوست په چوپتیا سره | |

| د لومړي تمرين حل:<br>۱ – اِستيقظَ احمدُ مبكراً<br>۲ – اخذ بندقيتهُ و قليلاًمن الماءِو الطعام.<br>۳ – راى احمدُ غزالةً. | ولولي او سخت لغتونه د ځان سره ياد داشت کوي د لوستلو په وخت کې محترم ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په څو تنو زده کوونکو لولي او معنا کوي ( البته ټوټه ټوټه ) بيا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او د نوي لغتونو معنا په تخته وليکي او بيا يې ولولي بيا هم ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرين په زده کوونکو لولي او ځوابونه يې د لوست څخه پيدا کوي او ښوونکی ورسره مرسته کوي، وروسته دويم تمرين هم په زده کوونکوباندي لولي او مرسته ورسره کوي.<br><br>**ارزونه:**<br>۱ – څوک د لوست درې کرښې ويلی او معنا کولی شي؟<br>۲ – څوک د نوي لغتونو معنا په تخته ليکلی شي؟<br>۳ – څوک د لوست په باره کې خپل نظر په عربي ژبه ويلی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوی چې د لوست دريم تمرين په خپلو کتابچو کې وليکي او په خپله يو مثال زده کوونکو ته ښايي.<br>۱ – لم يرجع احمدُ الى البيتِ. | |
|---|---|---|

## لوست: نولسم ( دویمه برخه )

**سرلیک:** الصیاد و الغزالة

**مخ:** ۱۱۰ – ۱۱۲

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – الف مقصوره په جملو کې په ګوته کړي.

۲ – ثلاثي فعلونه په سمه توګه وپېژني او ولیکي.

۳ – د ( لَم ) په معنا پوه شي.

**نوي لغتونه:** بندقیة ( ټوپک ) الغابةُ ( ځنګل ) العُشبُ ( واښه ).

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب، دوه کسیز او په ډله ییزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې او د کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تیر درس ارزونه کوي:<br>– څوک د دغې جملې معنا ویلای شي؟<br>– ( یدخل احمد في الغابةِ. | د څلورم تمرین حل: ۱ – صعِدَ – خرجَ – وقفَ – رَکِبَ – قرَاَ – زار. |
| ۲۵ دقیقې | – محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست څلورم تمرین د ځان سره ولولي او د هغه څخه ثلاثي فعلونه راوباسي او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي، وروسته محترم ښوونکی د زده کوونکو لیکل شوي فعلونه باید ملاحظه کړي او بیا له زده کوونکو څخه وغواړي چې د تختې مخې ته راشي او فعلونه ولیکي.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین چې د مقصوره الف لیکل د جملو په تشو ځایونو کې دي په زده کوونکو باندې عملي کوي او له زده کوونکو په وار غواړي چې تش ځایونه ډک کړي او پوره مرسته دې ورسره وکړای شي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین چې د جملو ترتیبول دي او هره جمله په خپل ځای کې لیکل دي د لوست په ډول په زده کوونکو په عملي توګه کار کوي هغه داسې چې یو زده کوونکی جمله د کتاب له مخې لولي او بل لوستل شوي جمله په تخته | د پنځم تمرین حل:<br>۱ – حتی.<br>۲ – علی.<br>۳ – اِلی.<br>۴ – حتی.<br>۵ – بلی.<br><br>د شپږم تمرین حل:<br>اِستیقظَ احمدُ من النومِ مبکراً<br>اخذ بندقیته و قلیلا من الماءِ و الطعام – خرج من البیت<br>دخل احمد الغابةَ<br>یبحث احمدُ عن صید یصیده.<br><br>د اووم تمرین حل: |

<table>
<tr>
<td></td>
<td>ليکي، او بيا بل زده کوونکی راځي او هره جمله په خپل ځای کې ليکي او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>- محترم ښوونکی د لوست اووم تمرين چې د مرادفې کلمي ليکل دي په زده کوونکو باندي لولي هغه هم په وار سره چې يو زده کوونکی جمله لولي او بل يې مرادف وايي.<br>او ورروسته د لوست اتم تمرين هم په همدې ډول په زده کوونکو لولي او تش ځايونه يې په مناسبو کلمو چې ورکړل شويدي ډکوي.<br><br>کورنی دنده:<br>ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست ( الواجب المنزلي) چې د لسو فعلونو راوستل دي په خپلو کتابچو کې وليکي<br>د مثال په توګه: ذهبَ – رای – دخلَ – نام<br>جَلسَ – حمدَ – حدثَ – جاءَت.</td>
<td>١ – صحا –٢ – المنزل<br>٣ – هربت – ۴ – لمَ<br>عاد.<br><br>د اتم تمرين حل:<br>٢ – الغابة – ٣ – العُشبُ ۴ –<br>سرعة. ۵ – السعيدة</td>
</tr>
</table>

**لوست: شلم ( لومړۍ برخه )**

**سرليک:** التلميذُ المؤدبُ.

**مخ:** ۱۱۳ – ۱۱۵

**وخت:** ۴۵ دقيقې ( يو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – نوی لوست په سمه توګه ولولي.

۲ – نوي لغتونه د معنا سره وليکي.

۳ – د مؤدب زده کوونکي په باره کې خبري وکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

اِسم مفعول: هغه اسم ته وايې چې په شخص يا شي چې په هغه کار واقع شوی وي راځي لکه: کتبَ:مکتوب. نصر: منصور. ضرب: مضروب.

اسم مفعول د ثلاثي مجرد څخه د مفعول په وزن جوړيږي لکه: حفظ: محفوظ. قرأ: مقروء.

او اِسم مفعول د غير ثلاثي څخه د مضارع په وزن په دې ډول جوړيږي چې لومړی حرف د فعل مضارع ( ميم ) مضموم راوړو او ما قبل حرف ته يې فتحه يا ( زبر ) ورکړو لکه: استخرجَ – يستخرجُ – مستخرج. دحرج: يدحرجُ، مدحرج.

**نوي لغتونه:**

(يتصرف – تصرف کوي ) يشفق ( مهرباني کوي )

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب، يو کسيز او په چوپتيا او ډله ييزه توګه لوستل .

**د لوست مرستندويه توکي:**

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تير لوست ارزونه کوي:<br>– څوک پنځه فعلونه ويلی شي؟<br>– د نوي لوست د عنوان پيدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې.<br>– څوک ويلی شي چې مونږ او تاسې ښه زده کوونکي ته څه وايو؟<br>– محترم ښوونکی د ځوابونو د اوريدلو وروسته د نوي لوست عنوان چې ( التلميذ المؤدبُ ) دی په ښه خط په توره تخته ليکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپل کتابونه خلاص کړي او لغتونه ياد داشت کړي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | - د دې لپاره چې زده کوونکي لوست په سمه توګه زده کړي محترم ښوونکی لوست په مناسب آواز سره لولي او ښه خبره دا ده چې محترم ښوونکی هره یوه جمله دوه ځلې ولولي او معنا یې کړي تر څو پرې زده کوونکي ښه پوه شي .<br>- محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او خپل اشتباهات د ښوونکي څخه پوښتنه وکړي او بیا څو زده کوونکي د ټولګي مخې ته راشي او خپل لوست په مناسب آواز لولي او معنا کوي یې ) لوستل باید مقطع مقطع تر سره شي.<br>- محترم ښوونکی د دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او نوي لغتونه د معنا سره په تخته ولیکي او بیا یې ولولي او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>- محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین په زده کوونکو لولي او ځوابونه یې د لوست څخه پیدا کوي البته د ښوونکي په مرسته وروسته د لوست دویم تمرین چې د سوال او ځواب په توګه په کتاب کې شته دی ولولي او مرسته دې وسره وکړي.<br><br>**ارزونه:**<br>- څوک د لوست پنځه کرښې لوستلی شي؟<br>- څوک د نویو لغتونو معنا ویلی شي؟<br>- څوک د مؤدب زده کوونکي په باره کې خبري کولی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست دریم تمرین چې د اسم مفعول لیکل دي په خپلو کتابچو کې ولیکي (مکتوب) محروف. | زده کوونکي د لوست د لومړي تمرین ځوابونه لولي:<br>۱ – هو الذي یعامل الناس بادب.<br>۲ – یطلب من شخص شیئاً بادب<br>۳ – حینما یرتکب خطا في حق احد فیعتذر الیه.<br>۴ – اذا رای في الحافلة رجلاً کبیراً او امراةً عجوزاً واقفین فیقوم من مکانه یطلب من کل واحد منهما ان یجلس مکانه. |

**لوست: شلم ( دويمه برخه )**

**سرليک:** التلميذُ المؤدبُ.

**مخ: ۱۱۶ – ۱۱۸**

**وخت: ۴۵** دقيقې ( يو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – اسم المفعول په جملو کې استعمال کړي.

۲ – فعل ماضي په مضارع او اسم مفعول بدل کړي.

۳ – د همزه ليکل چې د واو په سر راځي وپيژني.

**نوي لغتونه:** عجوز: سپين ږيرى. اعتَذرُ: بښنه غواړم.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب، دوه کسيز او د مسابقې په ډول.

**د لوست مرستندويه توکي:**

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکى له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم، او کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک څلور مثالونه د اسم المفعول لپاره ويلاى شي؟<br>– محترم ښوونکى د لوست څلورم تمرين چې د کتاب ۱۱۶ مخ کې دى په زده کوونکو په چوپتيا سره لولي او بيا چې د ماضي او مضارع فعلونو څخه اسم المفعول جوړول دي په زده کوونکو عملي کار کوي او محترم ښوونکى دى پوره مرسته ورسره وکړي.<br>– محترم ښوونکى پنځم تمرين بيا هم په څو تنو زده کوونکو په عملي توګه په تخته کار کوي چې د اسم مفعول لپاره د مثالونو جوړول دي، ښوونکى د بيلګې په ډول د اسم مفعول يو مثال په تخته ليکي (الرسالة مکتوبة)<br>– محترم ښوونکى ټولګى د مسابقې لپاره په دوو ګروپونو ويشي او هغوى ته لارښوونه کوي چې د لوست شپږم تمرين چې هغه مفتوحه همزه چې د مخه يې ضمه وي په ګوته کړي او هغه هم په دريو دقيقو کې او هر ګروپ چې ژر خلاص شي د مسابقې ګټونکى دى.<br>– محترم ښوونکى د لوست اووم تمرين چې د ضد کلمو استعمالول دي بيا هم په زده کوونکو عملي کار کوي او تش ځايونه يې | د څلورم تمرين حل:<br>۱ – مؤدب – ۲ – منزل.<br>۳ – مکرم.<br><br>د پنځم تمرين حل:<br>۲ – الحقُ منصور. ۳ – السيارة المصنوعةُ. الرجلُ معروف. الطبيعةُ مشهورة.<br><br>د شپږم تمرين حل:<br>يؤدّي – السؤالُ – يؤثرُ، تؤسّسُ – يؤلِّفُ.<br><br>د اووم تمرين حل:<br>۱ – عنف – ۲ – قبيحة.<br>۳ – عبوس ۴ – يکافئُ.<br>د اتم تمرين حل: |

|  | ډکوي او د لوست اتم تمرين په څو تنو نورو زده کوونکو چې بيا هم د تشو ځايونو ډکول دي عملي کوي او په خپله ورسره پوره مرسته کوي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی ( د لوست الواجب المنزلي ) زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د مؤدبو زده کوونکو په باره کې د کتاب له مخې څلور جملې په خپلو کتابچو کې وليکي. | المساعدةُ ۲ – الفاظاً ۳ – الحافلةُ ۴ – دائماً. |
|---|---|---|

## لوست: یو ویشتم ( لومړی برخه )

**سرلیک:** عمر رضي الله عنه یتفقد الرعیةُ.

**مخ:** ۱۲۲ – ۱۲۴

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – د لِمَ حرف په سمه توګه وپیژني او په جملو کې یې وکاروي.

۲ – د: اَلاَّ حرف موقعیت په جملو کې تعیین کړي.

۳ – د غایب مونث فعل په مخاطب مونث بدل کړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**لیس:** ماضي جامد فعل او ناقص دی او د نفي معنا اِفاده کوي او په اسمیه جملې داخلیږي او مبتدأ مرفوع او د هغه اسم یې ګرځوي او خبر یې منصوب او د هغه خبر یې ګرځوي لکه: لیس الطالبُ ناجحاً. کلمه ( الطالبُ ) اسم لیس او ناجحاً یې خبر دی.

**لِمَ:** مرکب لفظ دی د جر حرف (لا) او (ما) استفهامیه چې په هغه کې د حقیقت څخه سوال کیږي لکه: لم لا تذهب اِلی المدرسةِ.

**عمرو او عمر:** د ( واو ) حرف د ( عمرو) په کلمه کې د فرق لپاره د عمر او عمر اسم په خاطر راځي. لکه: فتح عمرو بن العاص مصر. کان عمرُ رضي الله عنه عادلاً.

**نوي لغتونه:**

اِناء ( لوښی ) اوقد ( ولګوو )

**د لوست میتودونه:** دوه کسیزه – او په ډله ییزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، دټولګي تنظیم، او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دعدالت په باره کې یوه جمله په عربي کې ویلای شي.<br>– محترم ښوونکی د لوست څلورم تمرین په زده کوونکو په چوپتیا سره لولي او په خپله یې معنا کوي او بیا د ( اَلاَّ ) حرف چې د جملو په منځ کې استعمالیږي په زده کوونکو باندې عملي کار کوي البته د مثال په وړاندې کولو سره او پوره مرسته دې وسره وکړي. | زده کوونکي پنځم تمرین حل کوي:<br>۲ – تطبخین.<br><br>۳ – تحضرین – تقبضین. تخرجین – تحملین – تُشعِلین – تسکبین. |

| | | |
|---|---|---|
| | - محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین چې د غایب مونث فعل په مخاطب مونث بدلول دي عملي کار وکړي او ښوونکی دې د بیلګي په توګه دوه فعلونه زده کوونکو ته د تختې په سر حل کړي او بیا زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې په مناسبو ګروپونو تقسیم شي او هر ګروپ ته جدا دنده ورکوي چې دوه فعلونه په مخاطب مؤنث بدل کړي او بیا د هر ګروپ مشر د تختې مخې ته راځي او بدل شوي فعلونه په تخته لیکي او بیا یې لولي، ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي.<br>- محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نوم په تشو ځایونو کې راوړل دي د تختې په سر عملي کوي او زده کوونکي باید تشویق کړل شي او مرسته ورسره وشي.<br>- محترم ښوونکی د لوست اووم تمرین چې په جملو کې مترادفي کلمې ایښودل دي عملي کار کوي او په خپله یوه جمله د بیلګې په ډول زده کوونکو ته ښايي ( منفق – مواطنین ).<br>- محترم ښوونکی د لوست د اتم تمرین کلمې په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او هرې یوې کلمې ته جمله جوړه کړي، دا هر څه د مسابقې په شکل تر سره کیږي، چا چې جمله ژر جوړه کړه هغه ګټونکی بلل کیږي. | زده کوونکي د شپږم تمرین تش ځایونه ډکوي.<br>١ – عمرُ.<br>٢ – عمرَ.<br>٣ – عُمَرُ.<br>٤ – عمرو.<br>٥ – عمرو.<br>زده کوونکي اووم تمرین کار کوي.<br>٣ – ننصبُ.<br>٤ – تتوقَدُ.<br>زده کوونکي اتم تمرین ته جملې جوړوي.<br>١ – رای عمر خیمة فیها امراة. |

## لوست: يو ويشتم ( دويمه برخه )

**سرليک:** عُمَرُ رضي الله عنه يتفقد الرعيةَ.

**مخ:** ۱۱۹ – ۱۲۱

**وخت:** ۴۵ دقيقې ( يو درسي ساعت )

**موخې:**

ښوونکي بايد:

۱ – لوست سم ولولي او معنا يې کړای شي.

۲ – د لوست نويو لغتونو معنا وليکلای شي.

۳ – د لوست سوالونو ته سم ځوابونه ورکړي شي.

**نوي لغتونه:**

يتفقدُ (کتنه کوي ) مُعِيل: پالونکی.

**د لوست ميتودونه:** يوکسيز، په چوپتيا سره لوستل او په دوه کسيزه توګه.

**د لوست مرستندويه توکي:**

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم، او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تير درس ارزونه کوي.<br>۱ – څوک د مؤدب زده کوونکي په باره کې يوه جمله په عربي کې ويلای شي.<br>– د نوي لوست د عنوان د پيدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتني:<br>– څوک ويلی شي چې د پيغمبر صلی الله عليه وسلم د دويم يار نوم څه و؟<br>– محترم ښوونکی د ځوابونو له اوريدنې وروسته د نوي لوست عنوان چې د ( عمر رضي الله عنه يتفقدُ الرعيةُ ) دی په ښه خط په توره تخته ليکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې کتابونو ته ښه ځير شي او لوست په چوپتيا سره ولولي او نوي لغتونه د ځان سره يادداشت کړي<br>– محترم ښوونکی لوست د بسم الله په ويلو سره په مناسب آواز دوه ځلې لولي او معنا کوي يې او وروسته زده کوونکو ته وا يې چې نوی لوست په چوپتيا سره ولولي او خپلې اشتباګاني د ښوونکي څخه وپوښتي او بيا څو تنه د تختې مخې ته راځي او لوست په مناسب آواز لولي او ښوونکی ورسره مرسته کوي. | زده کوونکي د لومړي تمرين سوالونو ته ځوابونه وايې:<br>۱ – يتفقدُ احوالَ الرعيةِ.<br>۲ – رآی في الخيمة امراةً.<br>۳ – کان الاطفالُ يبکون من الجوع.<br>۴ – لاَنها کانت فقيرةً.<br>۵ – خرجَ ليحملَ کيساً من الدقيقِ و اناءَ سمنٍ.<br>۶ – اَحضرَ کيساً من الدقيقِ و اناءَ سمنٍ.<br>۷ – عيَّن للارملةِ راتباً شهريا من بيت مال المسلمين.<br>زده کوونکي په دويم تمرين کار کوي:<br>خرج عمر رضي الله عنه اميرُ |

| | | |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی د لوست نوي لغتونه د معنا سره په څو زده کوونکو په تخته ليکي او لولي او بيا د لومړي تمرين ځوابونو ته د لوست له مخې ځواب ورکوي البته په دوه کسيزه توګه چې يو زده کوونکی سوال او بل يې ځواب ورکوي او په همدې ډول دويم تمرين هم په څو تنو زده کوونکو چې د جملو ترتيبول دي د لوست له مخې ترتيب کړي او بيا يې ولولي او تکرار يې کړي – بايد چې پوره مرسته ورسره وشي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د لوست درې جملې لوستلای شي؟<br>– څوک د لوست د نويو لغتونو معنا ليکلی شي؟<br>– څوک د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم په اړه خبري کولی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست دريم تمرين چې د لِمَ حرف دی د جملو په سر کې راوړي او خپلو کتابچو کې دې يې وليکي. | المؤمنين يتفقدُ احوال الرعية. رای عمر رضي الله عنه خيمةً فيها امراة، سالَ عمر المراةَ عن سبب بكاء الاطفالِ، فقالت المراَةُ: عمرُ لا يَتَفقَدُ احوالنا. |

## لوست: دوه ویشتم ( لومړۍ برخه )

**سرلیک:** العیدُ.

**مخ:** ۱۲۵ – ۱۲۷

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – لوست په سمه توګه ولولي او معنا یې کړي.

۲ – د لوست نوي لغتونه په تخته سم ولیکي.

۳ – د لوست سوالونو ته مناسب ځوابونه ورکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

فعل ثلاثي مزید: هغه فعل ته وایې چې په اصلي حروفو کې بل حرف اضافه شي.

فعل ثلاثي مزید یا مزید په یو حرف لکه: نزل – أنزل – کرم – أکرم.

مزید په دوه حروفونو لکه: کسب – انکسب – قلب: انقلب.

مزید په درې حرفونو لکه: خرج: استخرج. غفر: استغفر.

( لم ) لم یذهب اِلی المدرسةِ – لم یأکل الطعام.

**نوي لغتونه:** اِقترَبَ: نژدې شو. تصافَحَ: روغبړ یې وکړ. تَعَانَقَ: یو بل ته یې غاړه ورکړه.

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – په یو کسیز، ډله ییز – په چوپتیا سره لوستل.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د حضرت عمر رضي الله عنه د ژوند په باره کې یوه جمله په عربي کي ویلی شي؟<br>– د نوي لوست د عنوان پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتني.<br>– څوک ویلی شي چې د روژې د ختمیدو وروسته کومه ورځ راځي.<br>– محترم ښوونکی د ځوابونو وروسته د نوي لوست عنوان چې ( العید ) دی په توره تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې خپل کتابونه خلاص کړي او دوه ویشتم لوست د ځان سره ولولي او نوي لغتونه یاد داشت کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست د بسم الله په ویلو سره په مناسب آواز | |

| | | |
|---|---|---|
| | دوه ځلې لولي او معنا يې کوي، او بيا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې نوی لوست په مناسب آواز ولولي او معنا يې کړي .<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرين په څو تنو زده کوونکو لولي او له څو تنو نورو څخه غواړي چې د سوالونو ځوابونه د لوست څخه پيدا او ځواب يې ورکړي، او ښوونکی ورسره مرسته کوي .<br>– او په همدې توګه دويم تمرين هم چې د سوالونو او ځوابونو په ډول په کتاب کې شته دی په څو تنو زده کوونکو لولي او ښوونکی محترم د زده کوونکو پاملرنه ورته را اړوي او مرسته هم ورسره کوي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د لوست پنځه کرښې لوستلی شي؟<br>– څوک د اختر په باره کې يوه جمله په عربي کې ويلي شي؟<br>– څوک د لوست د لغتونو معنا په تخته ليکلی شي؟<br><br>**کورنی دنده:**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست دريم تمرين چې د مذکر سالم نومونو پيدا کول دي په خپلو کتابچو کې وليکي. د مثال په توګه:المسلمونَ. | زده کوونکي د لومړي تمرين ځوابونه لولي:<br>١ – ليشتريا ملابسَ جديدة.<br>٢ – اِشتر الملابس و الحلويات اِستعداداً للعيد.<br>٣ – خرج لأداء صلاة العيد.<br>٤ – تصافح المصلون بَعد صلاةِ العيد.<br>٥ – قال ( عيد مبارک وتقبل الله منا و منكم الصيام و القيام). |

## لوست: دوه ویشتم ( دویمه برخه )

**سرلیک:** العید.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې یو درسي ساعت.

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – جمع مذکر سالم وپیژني او په جملو کې یې په ګوته کړي.

۲ – د ثلاثي فعل په معنا بشپړ پوه شي.

۳ – افعال ثلاثي مزید په جملو کې په سمه توګه وپیژني.

**نوي لغتونه:**

**د لوست میتودونه:** دوکسیز – ډله ییز – او د مسابقې په ډول.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د جمع مذکر سالم دوه مثالونه ویلی شي؟ | زده کوونکي لیکي:<br>جاء المؤمنون.<br>جاء المصلون.<br>جاء الزائرون.<br>جاء المعلمون.<br>جاء المدرسون.<br>جاء المسافرون. |
| ۲۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د بسم الله په ویلو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې کتابونه خلاص کړي او د لوست څلورم تمرین په چوپتیا سره ولولي او وروسته زده کوونکي په دري ګروپونو ویشي او هر ګروپ ته لارښوونه کوي چې مفرد اسم د مذکر سالم په جمع بدل کړي او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي، ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي او هم زده کوونکي تشویق کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین په زده کوونکو لولي او د هغه څخه ثلاثي مزید فعلونه راوباسي او لولي او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین چې په مناسبو کلمو د تشو ځایونو ډکول دي په زده کوونکو عملي کار کوي او لولي یې.<br>– محترم ښوونکی د دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او دوو نورو ته لارښوونه کوي چې اووم | زده کوونکي پنځم تمرین لولي.<br>۱ – صافحَ، ۲ – اِشترى، ۳ – اقترب، ۴ – استیقظَ<br><br>زده کوونکي شپږم تمرین لولي:<br>۲ – تصافح، ۳ – لزیارة.<br>۴ – مسروراً، ۵ – الجدیدة.<br>د اووم تمرین حل:<br>۲ – نامَ، ۳ – با عَ،<br>خلعَ، ۴ – ذهبَ، ۵ – حزین. |

| | | |
|---|---|---|
| د اتم تمرين حل:<br>۲ – متى تصافح المصلونُ؟<br>۳ – إلى ماذا استمع زكريا؟<br>۴ – أين صلى زكريا؟<br>۵ – من زار الأقاربَ؟<br>زده کوونکي کورنۍ دنده ليکي.<br>د (الف) قطار:<br>ذهب أحمدُ الى السوقِ لشراءِ ملابس جديدة و حلويات للعيد.<br>د ( ب) قطار: خرجَ أحمدُ لأداءِ صلاة العيد.<br>صلى أحمدُ الصلاةَ و جلسَ يستمعُ الى الخطبةِ | تمرين ولولي او هر قطار په خپل ځای کې وليکي او بيا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او متضادې کلمې يو له بل سره و نښلوي او بيا يې ولولي، ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اتم تمرين چې ځوابونو ته سوالونه جوړول دي په څو تنو زده کوونکو په تخته کار کوي او د مثال په توګه ښوونکی ليکي.<br>– ۲ – متى تصافحَ المصلونَ؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې هغه عملونه چې أحمد د اختر د لمونځ له مخه کړيدي په الف قطار کې وليکي او هغه عملونه چې د اختر لمونځ وروسته يې کړيدي په خپلو کتابچو کې وليکي. | |

## **لوست: درویشتم ( لومړی برخه )**

**سرلیک:** النملة و الحمامةُ.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – لوست په سمه توګه ولولي او معنا یې کړي.

۲ – د لوست نوي لغتونه د معنا سره په تخته ولیکي.

۳ – د لوست سوالونو ته مناسب ځوابونه ورکړي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

ماضي فعل څوارلس صیغې لري شپږ صیغې د غایب مذکر اومؤنث لپاره اِستعمالیږي لکه:

غایب مذکر: ذهب، ذهبا، ذهبوا.

غایب مؤنث: ذهبت، ذهبتا، ذهبن.

او شپږ صیغې د مخاطب مذکر او مؤنث لپاره راځي.

مخاطب مذکر: ذهبتَ، ذهبتُما، ذهبتُم.

مخاطب مؤنث: ذهبتِ، ذهبتما، ذهبتُنَّ.

او دوه صیغې نور د متکلم لپاره راځي لکه: أنا ذهبتُ، نحنُ ذهبنا.

نوي لغتونه: النملةُ ( میږی ) الحمامةُ ( کوتره ). رَمَتْ ( وویشتله )

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب، یو کسیز او په چوپتیا سره لوستل.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۴ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر درس ارزونه کوي.<br>– څوک د اختر په باره کې یوه جمله په عربي کې ویلای شي؟<br>د نوي لوست د عنوان د پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې کوی:<br>چا د میږي او کوترې قصه اوریدلې ده؟ | |
| ۲۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د ځوابونو وروسته د نوي لوست عنوان چې ( النملةُ و الحمامةُ ) دی په تخته لیکي او زده کوونکو ته وایې چې خپل کتابونه خلاص کړي او درویشتم لوست په ځیر سره ولولي او نوي لغتونه یادداشت کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز سره دوه ځلې لولي او | |

| | | |
|---|---|---|
| | معنا کوي یې او د میږي او کوترې قصه زده کوونکو ته په ساده ژبه وایې.<br>– بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست د دوو دقیقو لپاره په چوپتیا سره ولولي او له ښوونکی څخه د سختو کلماتو د حل لپاره پوښتنه کوي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په څو تنه زده کوونکو ټوټه ټوټه لولي او بیا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او نوي لغتونه د معنا سره په تخته ولیکي<br>– محترم ښوونکی د لوست دریم تمرین چې د سوال او ځواب په ډول په کتاب کې شته دی په زده کوونکو لولي او پوره مرسته ورسره کوي او بیا وروسته دویم تمرین چې د ( نعم، او لا ) په کلمو ځواب ورکول کیږي په زده کوونکو عملي کوي په داسې شکل چې یو زده کوونکی پوښتنه کوي او بل په: نعم او یا لا سره ځواب ورکوي، او ښوونکی ورسره مرسته کوي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د لوست څلور کرښې لوستلی او معنا یې کولای شي؟<br>– څوک د میږې او کوترې قصه په ساده ژبه ویلی شي؟<br>– څوک د لوست نوي لغتونه د معنا سره ویلای شي ؟<br><br>**کورنی دنده:**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست لومړی تمرین چې د سوالونو ځوابونه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>د مثال په ډول:<br>۱ – لتشرب الماءَ. | |

## لوست: درويشتم ( دويمه برخه )

**سرليک:** (النملة و الحمامةُ )

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقيقې ( يو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – د فعل ماضي سره تانيث يو ځای کړي.

۲ – د جملو څخه صحيح او معتل فعلونه جلا کړي.

۳ – د ماضي فعل څخه مضارع او امر جوړ کړی.

**نوي لغتونه:**

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب، په دوه کسيزه او ډله ييزه توګه.

**د لوست مرستندويه توکي:**

**د لوست بهير:**

| د زده کوونکو فعاليتونه | د ښوونکي فعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| د څلورم تمرين حل:<br>۱ – قطفت.<br>۲ – صعدت.<br>۳ – نجت.<br>۴ – لسعت.<br>۵ – طارت.<br><br>د پنځم تمرين حل:<br>فعل صحيح  فعل معتل:<br>۱ – سقط  وقف.<br>۲ – أخذَ  طارت.<br>۳ – لجاَت  سعی.<br>۴ – مدّ.<br><br>د شپږم تمرين حل:<br>۱ – نملة – ۲ –لتشرب. | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تير لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د دغه سوال ځواب په عربي کې ويلای شي؟ أين كانت الحمامةُ؟<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست څلورم تمرين چې ( ت ) تانيث د فعل ماضي سره يو ځای کول دي ښه په ځير سره ولولي او وروسته ښوونکی د تمرين جملې په تخته ليکي او له څو تنو زده کوونکو څخه په وار غواړي چې د تختې مخې ته راشي او تاء (تانيث) د فعلونو سره يو ځای کړي ښوونکی دې ورسره پوره مرسته وکړي.<br>– محترم ښوونکی د پنځم تمرين په باره کې چې د صحيح او معتل فعلونو پيدا کول دي مختصراً معلومات ورکوي چې معتل فعلونه هغه فعلونو ته وايې چې حرف علت يعني ( واو – الف او يا ) پکې موجود وي او صحيح فعلونه حرف علت نلري. او بيا پنځم تمرين په څو تنو زده کوونکو لولي او له هغې څخه صحيح او معتل فعلونه راباسي او په تخته يې ليکي او ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرين چې د تشو ځايونو ډکول | ۵ دقيقې |

| | | |
|---|---|---|
| | دي په څو تنو زده کوونکو لولي او تش ځایونه یې د لوست په اساس ډکوي او بیا پوره جمله لولي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرین چې د مرادفي کلمې پیدا کول دي په زده کوونکو عملي کار کوي په دې ډول چې دوه زده کوونکي د تختې مخې ته غواړي او ټولې کلمې چې یو د بل مرادف دي پر تخته لیکي او بیا له څو تنو نورو څخه غواړي چې تختې راشي او کلمات یو له بل سره ونښلي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اتم تمرین چې د حیواناتو او د هغوی مونث نومونه دي لولي او معنا کوي او د مؤنث کلمې د مذکرو کلمو سره یو ځای کوي.<br>– د مثال په توګه: الثورةُ – بقرة – الجملُ – الناقةُ – الدیک – الدجاجةُ – الکبشُ – الشاةُ – القطُ – القطةُ.<br><br>**کورنۍ دنده:** محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د ماضي فعل څخه د مضارع او امر فعل جوړ او په کتابچو کې یې ولیکي. | ٣ – الموجُ ۴ – تحرقُ.<br>٥ – حمامة ٦ – بجانب.<br>٧ – فقطفت ٨ – رمتها.<br>٩ – النملة ١٠ – نجت<br>١١ – أمان.<br>د اووم تمرین حل:<br>أشرفت ← قاربت.<br>الثور ← الشاة.<br>القتها ← رمتها.<br>یصوِّبُ ← یوجه.<br>قصده ← نحر فیه<br>کیده ← مکره.<br><br>د مثال په ډول:<br>٢ – یأکلُ – کل – سارَ– یسیرُ – سر.<br>٢ – یقفُ – قف. |

## لوست: څلور ویشتم ( لومړۍ برخه )

**سرلیک:** الذبابةُ حشرة خطیرة.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – لوست په سمه توګه ولولي او معنا یې کړای شي.

۲ – د لوست نوي لغتونه د معنا سره په تخته ولیکلای شي.

۳ – د ضرر رسوونکو حشراتو په باره کې خبري وکړای شي.

۴ – زده کوونکي باید مفرد کلمې په جمع بدلې کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

فاعل: هغه مرفوع اسم دی چې د معلوم فعل څخه وروسته راځي او د فعل وقوع هغه ته نسبت کیږي لکه – فاز المجتهد – قام التلمیذُ.

حکم فاعل: د فاعل حکم هغه دی چې وجوباً مرفوع دی او د فعل څخه وروسته راځي.

فاعل په کلام کې یا ظاهر وي لکه نجح زید.نجحت فاطمةُ. او یا مستتر وي. لکه: زید ( نجح ) یعني نجح هو.

فاطمةُ نجحت: یعنې: نجحت ( هي ) که په دوو آخرنیو مثالونو کې فاعل ضمیر مستتر ( هو ) او ( هي ) او په دوو لومړیو مثالونو کې فاعل اسم ظاهر دی ( زید ) ( فاطمةُ )

**نوي لغتونه:** الذُبابةُ ( مچ ) المواشي ( حیوانات ). القاذوراتُ: خځلي. السَّمادُ: سِره (کیمیاوی کود).

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب، یو کسیز او په دوه کسیزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتني، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې د کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک دغه ماضي فعلونه په مضارع او امر بدلولی شي؟: سارَ – طارَ – وقفَ.<br>– د نوي لوست د عنوان پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې :<br>– څوک ویلی شي چې مچ ته په عربي ژبه کې څه شي وایي؟.<br>– محترم ښوونکی د ځوابونو وروسته د نوي لوست عنوان چې ( الذبابةُ حشرة خطیرة )دی په تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې نوی لوست له ځان سره ولولي او نوي لغتونه یې یاد | د لومړي تمرین حل:<br>۲ – تسببُ الذبابةُ خسائرَ کبیرةً للمزارعین.<br>۳ – تعیشُ الذبابةُ في بیئة ملیئة بالقاذورات و السمار<br>۴ – نتنجنبُ من مضار الذبابة برش الادویة القاتلة للحشرات. |

| | | |
|---|---|---|
| | داشت کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست د بسم الله په ویلو سره په مناسب آواز دوه ځلې لولي او معنا کوي، بیا نوی لوست په څو تنو زده کوونکو ټوټه ټوټه لولي او وروسته یاد داشت شوي کلمې په تخته لیکي او معنا کوي یې.<br>– محترم ښوونکی د لوست دویم تمرین چې د سوال او ځواب په ډول په کتاب کې شته دی په څو تنو زده کوونکو لولي او په خپله هم ورسره پوره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین چې سوالونو ته ځواب ویل دي په زده کوونکو باندې عملي لولي او پوره مرسته ورسره کوي او یو مثال یې ښوونکی په خپله په تخته کار کوي.<br>– ١ – الذبابةُ تنقلُ امراضاً خطيرةً منها امراضُ العيونِ و الاِسهالِ و السل و غيرها.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د لوست درې کرښې لوستلی شي؟<br>– څوک نوي لغتونه د معنا سره ویلی شي؟<br>– څوک د مضره حشراتو په باره کې خبرې کولی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست دریم تمرین چې مفرد نومونه دي په جمع بدل کړي او په خپلو کتابچو کې یې ولیکي، د مثال په ډول: ذبابة – ذباب – حمامة – حمامات. | |

## لوست: څلور ویشتم ( دویمه برخه )

**سرلیک:** الذبابةُ حشرة خطيرة.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – فاعل په جملو کې په بشپړه توګه وپېژندلای شي.

۲ – مفرد غائب په جمع غائب بدل کړای شي.

۳ – متوسطه همزه وپېژني او د کلمو په منځ کې یې ولیکلای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**نوي لغتونه:**

**د لوست میتودونه:** دوه کسیز، ډله ییز، او د مسابقې په توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی دسلام، احوال پوښتنې، د ټولګي ترتیب او تنظیم وروسته کورنۍ دنده ملاحظه او بیا د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک دغه مفرد نومونه په جمع بدلولی شي؟<br>( دجاجة، بقرة، نعامة )<br>– محترم ښوونکی د لوست څلورم تمرین چې فاعل په جملو کې په نښه کول دي په زده کوونکو عملي کار کوي او له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې په وار سره هره جمله ولولي او فاعل په ګوته کړي، ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي، د مثال په ډول ( الذبابةُ )<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین چې مفرد غائب په جمع غائب بدلول دي په زده کوونکو په تخته عملي کار کوي او خپله یو مثال یې په تخته لیکي ( هم یمنعون ) او لولي یې او نور مثالونه په زده کوونکو په وار سره لیکي او لولي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرین چې دهمزه لیکل د کلمې په منځ کې دی په زده کوونکو باندي کار کوي او په خپله د زده کوونکو سره مرسته کوي. | د څلورم تمرین حل:<br>۲ – البعوضةُ.<br>۳ – العلماءُ.<br>۳ – الحشراتُ.<br>۴ – القردُ.<br><br>د پنځم تمرین حل:<br>۳ – هم یعنون.<br>۴ – هم ینقلون.<br>۵ – هم یقتلون.<br>۶ – هم یستطیعون.<br>۷ – هم یصلون. |

| | | |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی زده کوونکي د مسابقې په خاطر په دوه ډلو ویشي او لاربښوونه ورته کوي چې د لوست اووم تمرین چې تش ځایونه په مناسبو کلمو ډکول دي په ډله ییزه توګه په درېو دقیقو کې ډک کړي، ښوونکی دې د ټولګي نظم په پام کې ونیسي او د مسابقې ګټونکی باید معرفي شي او د هغوی معرفي کیدل باید په انصاف سره وشي.<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لاربښوونه کوي چې د مچ او د هغې د خطراتو څخه ځان ساتل دي په عربي ژبه کې په درېو کرښو کې ولیکي. | ۸ – هم یصلون.<br>د شپږم تمرین حل:<br>۱ – بیئة، ۲ – جریئة، ۳ – هیئة.<br>د اووم تمرین حل:<br>۱ – الامراض.<br>۲ – کثیرین.<br>۳ – کبیرة.<br>۴ – الادویة.<br>۵ – النظافةُ. |

## لوست: پنځه ویشتم.

**سرلیک:** الامومةُ عند الطیور.

**مخ:** ۱۴۳

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یودرسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – لوست په سمه توګه ولولي او معنا یې کړي.

۲ – د نوي لوست لغتونه د معنا سره ولیکي.

۳ – د مضارع مثنی فعلونه وپیژني او ولیکي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

مثنی: له هغه مفرد اسم څخه عبارت دی چې له دوو مفردو چې په لفظ او معنا کې متفق وي نیابت کوي په زیاتوالي د ( الف ) او ( ن ) او یا ( یاء ) او ( ن ) مکسور او ما قبل یې مفتوح وي جوړیږي لکه: تلمیذان – کتابان – جاء تلمیذان – جاءت تلمیذین – مررتُ بالتلمیذین.

د مثنی علامه ( الف – نون ) او یا ( یاء – ن ) دی.

مثنی په الف سره مرفوع او په یاء سره منصوب او مجرور کیږي . لکه: مدرس:– مدرسان – مدرسین.

**نوي لغتونه:** اُمومة ( مور والی ) ا لاعشاشُ ( ځالې ).البیضُ: هګۍ. الطیرانُ: الوتنه.

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب، یو کسیز او په دوه کسیزه توګه او په چوپتیا سره لوستل.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د مچ په باره کې یوه جمله په عربي ژبه ویلی شي؟<br>– د نوي لوست د عنوان پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې.<br>– څوک ویلی شي چې مرغان خپل بچې څرنګه ساتي.<br>– محترم ښوونکی د ځوابونو د اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان چې ( الأُمومةُ عندَ الطیورِ ) د تختې په سر کې لیکي او زده کوونکو ته وایې چې خپل کتابونه خلاص کړي او نوي لوست ته ښه ځیر شي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز سره لولي او معنا کوي یې او وروسته زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې نوی لوست د دوو دقیقو لپاره په چوپتیا سره ولولي او د خپلو غلطیانو په باره کې له | |

ښوونکي څخه پوښتنه وکړي او نوي لغتونه د ځان سره یاد داشت کړي.

- محترم ښوونکی نوی لوست په څو تنو زده کوونکو په مناسب آواز لولي او معنا کوي او بیا یاد داشت شوي لغتونه د څو تنو زده کوونکو په واسطه په تخته لیکي.
- محترم ښوونکی له دوو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د لوست دویم تمرین چې د سوال او ځواب په ډول راغلی دی ولولي او بیا د لوست دریم تمرین هم په زده کوونکو چې د نوم راوړل د فعل د مخه دي عملي کار کوي او مختصر معلومات هم ورکوي چې هغه مثنی اسم چې  د فعل څخه د مخه راشي فعل بیا په مثنی بدلیږي. د مثال په ډول: الوالدان یتناوبان.
- الوالدان یقومان – نورې جملې په زده کوونکو لولي او په وار سره بدلون راوړي.

**ارزونه:**

- څوک د لوست دوه کرښې لوستلای شي ؟
- څوک د لوست نوي لغتونه په تخته لیکلی شي؟
- څوک د دغو کلمو معنا ویلی شي ( الصغارُ، طیران ).

**کورنۍ دنده:** محترم ښوونکی د لوست لومړی تمرین ځوابونه د لوست سره سم زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي د مثال په ډول.

- تقوم الطیورُ ببناءِ الأعشاش.

د دریم تمرین حل:

٣ – الوالدان یدربان.

٤ – الوالدان یعلمان.

٥ – الوالدان یحضران.

٦ – الوالدان یساعدان.

## لوست: پنځه ويشتم ( دويمه برخه )

**سرليک:** الأُمومةُ عند الطيور.

**مخ:** ۱۴۶

**وخت:** ۴۵ دقيقې ( يو درسي ساعت )

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – په عربي ژبه کې د يو بل سره محاوره وکړي.

۲ – مثنى اسم په جملو کې په بشپړه توګه وپېژني.

۳ – د مضارع فعل مفرد مؤنثي صيغې په جمع مؤنث سره بدلې کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**نوي لغتونه:**

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب په دوه کسيزه او ډله ييزه توګه.

**د لوست مرستندويه توکي:**

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تير درس ارزونه کوي.<br>– څوک د لاندې سوال ځواب په عربي ژبه کې ويلي شي؟<br>– متى تضع الدجاجةُ البيضَ؟<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست څلورم تمرين چې د مضارع فعلونه په مثنى بدلول دي په تخته عملي کار وکړي.<br>او په خپله يو فعل په مثنى بدلوي او بيا نور په زده کوونکو عملي کوي (هما تضعان).<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرين چې تش ځايونه يې په مرادفو کلمو ډکول دي په زده کوونکو باندې عملي کار کوي، د مثال په ډول: الطعام – مرادف يې: الغذاء.<br>– محترم ښوونکی په توره تخته کې يو چوکاټ جوړوي او له زده کوونکو څخه غواړي چې د شپږم تمرين کلمې په تخته وليکي او بيا له څو تنو نورو څخه غواړي چې هغه شيان چې انسان سره اړه لري دويم چوکاټ کې وليکي او هغه شيان چې طيورو سره اړه لري په لومړي چوکاټ کې په وار سره ليکي او ښوونکی ورسره | د څلورم تمرين حل:<br>هما تتناوبان – هما تحضران هما تلقيان – هما تسرعان.<br>هما تحملان – هما تساعدان هما تكسبان.<br><br>د پنځم تمرين حل:<br>۲ – الوالدان. ۳ – نجاة.<br>۴ – تمرين.<br>د شپږم تمرين حل:<br>طيور انسان<br>الف ب<br>فرخ حذاء<br>منقار اسنان<br>اعشاش بيوت<br>جناح كوب<br>بيض فم |

| | | |
|---|---|---|
| | مرسته كوي.<br>– محترم ښوونكى د لوست اووم تمرين په وار سره په زده كوونكو لولي او په خپله ورسره پوره مرسته كوي.<br><br>**كورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونكى زده كوونكو ته لارښوونه كوي چې د لوست (الواجب المنزلي ) چې د اولاد په وړاندي د والدينو مسئوليتونه دي د لوست څخه راوباسي او په خپلو كتابچو كې يې ليكي د مثال په ډول:<br>نجد في الطيور أُمومة كاملة و تتمثل في تفريخ الصغار و رعايتها بالتغذية. | ريش ولد |

## لوست: شپږ ويشتم ( لومړۍ برخه ).

**سرليک:** الرياضية البدنية.

**مخ:** ۱۴۹

**وخت:** ۴۵ دقيقې ( يو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – لوست په بشپړه توګه ولولي او معنا يې کړای شي.

۲ – د لوست سوالونو ته په سمه توګه ځواب ورکړای شي.

۳ – په خپل منځ کې په عربي ژبه د لوست اړوند محاوره وکړای شي.

**نوي لغتونه:** يُشجِعُ: هڅوي. السباحةُ: لامبو وهل. الرمايةُ: نيزه ويشتل. رکوبَ الخيل: په آس سپريدل.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

فعل مضاعف: فعل مضاعف په دوه قسمه دی:

۱ – مضاعف ثلاثي: عبارت له هغه لفظ څخه دی چې عين د فعل او لام د فعل د يوه حرف څخه وي لکه: فرَّ، مدَّ، ردَّ، شدَّ. ليکن ځينې کلمې لکه: فرَّ، اِحمرَّ، عظَّمَ، مضاعف نه دي ځکه ( راء ) په اول دوو مثالونو او ( ظ ) په دريم مثال کې زايد دي.

۲ – مضاعف رباعي: عبارت د هغه لفظ څخه ده چې په هغه کې حرف سره د فاصلې تکرار شوی وي لکه: زلزل، صرصر، وشوش ( اِنَّ ) حرف مشبه په فعل ده چې په مبتدأ او خبر داخليږي مبتدأ منصوب کوي چې اِسم د دې يادېږي او خبر مرفوع کوي چې خبر د دې يادېږي لکه: اِنَّ زيداً مجتهد – په دې مثال کې کلمه د ( مجتهد ) خبر د ( اِنَّ ) چې مرفوع په ظاهره ضمه سره ده او حروف مشبه په فعل يا هغه حروف چې مبتدأ منصوب او خبر مرفوع کوي عبارت ده له: اِنَّ: دغه، کأنَّ، ليکن، مګر. لعلَّ: شايد.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب – يو کسيز او په دوه کسيزه توګه.

**د لوست مرستندويه توکي.**

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظيم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تير درس أرزونه کوي.<br>– څوک کولای شي چې د مور په هکله په عربي ژبه کې يوه جمله جوړه کړي؟<br>– د نوي لوست د عنوان د پيدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې.<br>– څوک ويلی شي چې د انسان بدن ته د خوراک څخه وروسته کوم عمل ګټه رسولې شي؟<br>– محترم ښوونکی د ځوابونو څخه وروسته د نوي لوست عنوان چې ( الرياضةُ | زده کوونکي بايد داسې ځواب ووايي:<br>الأمُّ تقومُ برعايةِ الاولادِ. |

| | | |
|---|---|---|
| | البدنيةُ ) ده په تخته ليکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې نوی لوست په چوپتيا سره ولولي او د غلطيانو په باره کې د ښوونکې څخه پوښتنه وکړي او نوي لغتونه د ځان سره ياد داشت کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز دوه ځلې لولي او زده کوونکو ته يې معنا کوي او بيا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د ټولګې مخې ته راشي او لوست په مناسب آواز ولولي او نور زده کوونکي يې ورسره تکراروي.<br>– محترم ښوونکی له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او ياد داشت شوي لغتونه په تخته وليکي او معنا يې کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست دريم تمرين چې د سوال او ځواب په ډول دی په وار سره ولولي او هغه داسې چې سوال يې يو زده کوونکی وکړي او ځواب يې بل ورکړي، ښوونکی دې پوره مرسته وکړي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د لوست دری لومړۍ کرښې ويلی شي؟<br>– څوک د لوست د نويو لغتونو معنا ليکلی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست لومړی تمرين چې سوالونو ته د لوست له مخې ځواب ورکول دي په خپلو کتابچو کې وليکي د مثال په توګه: يشجعُ الاسلامُ اتباعَهُ على ممارسةِ الرياضيةِ. | |

**لوست: شپږ ویشتم ( دویمه برخه )**

**سرليک:** الرياضةُ البدنيةُ.

**مخ:** ۱۵۱

**وخت:** ۴۵ دقيقې.

**موخې:**

زده کوونکي بايد:

۱ – جمع تکسير په مفرد بدل کړای شي

۲ – د (اِن) اسم په سمه توگه و پيژني او وېې ليکلای شي .

۳ – مضعف فعلونه په جملو کې استعمال کړای شي.

**د لوست ميتودونه:** سوال او ځواب په دوه کسيز او ډله ييزه توگه.

**د لوست مرستندويه توکي:**

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | – محترم ښوونکی د سلام، احوال پوښتنې، د ټولگي تنظيم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تير لوست ارزونه کوي<br>– څوک د دغې سوال ځواب په عربې کې ويلای شي: هل تمارس الرياضة؟<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست دويم تمرين ته ښه په ځير سره وگوري او بيا هرې کلمې ته يوه جمله جوړه کړي او خپلې جملې په تخته وليکي او وېې لولي او ښوونکی دې ورسره پوره مرسته وکړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست څلورم تمرين په تخته ليکي او له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د جمعې کلمې په مفرد بدلې کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرين چې د اَنَّ اسم په جملو کې ښودل دي په زده کوونکو باندې عملي کار کوي او په داسي ډول چې يو زده کوونکی جمله لولي او بل يې د اَنَّ اسم را په گوته کوي بيا هم ښوونکی ورسره پوره مرسته کوي.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرين چې اَنَّ حرف راوړل د جملو په سر کې دي په زده کوونکو عملي کار کوي او د اسم آخر حرکت يې په نښه کوي او دغه عمليه زده کوونکو ته په ښکاره ډول ښايي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرين چې د تشو ځايونو ډکول دي | د پنځم تمرين حل:<br>الإسلام.<br>الرياضية.<br>الجسمُ.<br>الإنسانُ.<br>محمد.<br><br>د شپږم تمرين حل:<br>إن الاسلامَ.<br>إن الاسلامَ.<br>إن الرمايةَ.<br>إن الرياضيةَ.<br>د اووم تمرين حل:<br>۳ – عمرُ،۴ – المعلمُ.<br>۵ – الجسمُ. |

| | | |
|---|---|---|
| | په زده کوونکو کار کوي او خپله مرسته ورسره کوي د مثال په توګه.<br>– ۲ ( الاسلام ) او بيا اتم تمرين هم په زده کوونکو عملي کار کوي او ( مضعف ) فعلونه په جملو کې په ګوته کوي او يو مثال ورته ليکي ( حث ).<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>– محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست څخه د ( اسم اِنَّ ) راويستل دي په خپلو کتابچو کې وليکي او د اسم آخر ته مناسب حرکت ورکړي د مثال په توګه: إنَّ رسالةَ – إنَّ المعلمَ. | د اتم تمرين حل:<br>۳ – علَّم، ۴ – خصّصَ. ۵ – يقوي. |

## لوست: اوویشتم ( لومړۍ برخه:

**سرلیک:** البستانيُ و البُلبُلُ.

**مخ:** ۱۵۵

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت.

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – لوست په سمه توګه ولولي.

۲ – د لوست نوي لغتونه په تخته سم ولیکي.

۳ – د معرفه او نکره په معنا پوه شي.

**نوي لغتونه:** البُستانيُ ( مالیار ) تغرید ( چغیدل ) الحجلُ ( زرکه ) الغرابُ ( کارغه ).

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – یو کسیز او په دوه کسیزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>– څوک د لاندې لوبو نومونه په عربي کې ویلای شي: والیبال – فوټبال – باسکتبال.<br>– د نوي لوست د عنوان پیدا کولو لپاره هڅوونکي پوښتنې.<br>– څوک ویلی شي چې بلبل او مالیار ته په عربي کې څه وایې؟ | |
| ۲۵ دقیقې | – محترم ښوونکی د ځوابونو څخه وروسته د نوي لوست عنوان چې (البستاني و البلبلُ ) دی په ښه خط په تخته لیکي او زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست په چوپتیا سره ولولي او نوي لغتونه د ځان سره یاد داشت کړي.<br>– محترم ښوونکی نوی لوست په مناسب آواز دوه ځلې لولي او معنا یې کوي او بیا له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د تختې مخې ته راشي او لوست ولولي.<br>– محترم ښوونکی له څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې نوي لغتونه په تخته ولیکي او معنا یې ووایې او بیا د لوست دویم تمرین چې د سوال او ځواب په توګه په کتاب کې شته دی په زده کوونکو ولولي او په خپله ورسره مرسته کوي. | |

| | | |
|---|---|---|
| | – محترم ښوونکی دلوست دریم تمرین چې د اسم معرفه څخه نکره جوړول دي په زده کوونکو په تخته کار کوي او مرسته ورسره کوي.<br><br>**ارزونه:**<br>– څوک د لوست آخرنۍ کرښې لوستلی شي؟<br>– څوک د لوست لغتونه په تخته لیکلی شي؟<br>– څوک د آزادۍ په هکله خبرې کولی شي. | د دویم تمرین حل:<br>۱ – ماذا رای البُستاني.<br>۲ – رای البُستاني بُلبُلاً صغیراً.<br><br>د دریم تمرین حل:<br>۱ – البُستاني ۲ – بلبل.<br>۳ – قفص. ۴ – حدیقة. |
| ۱۰ دقیقي | | |
| ۵ دقیقي | **کورنۍ دنده:**<br>محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست د لومړي تمرین ځوابونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |

## لوست: اوه ویشتم ( دویمه برخه )

**سرلیک:** البُستاني و البلبلُ.

**مخ:**

**وخت:** ۴۵ دقیقې ( یو درسي ساعت ).

**موخې:**

زده کوونکي باید:

۱ – لم په جملوکې سم استعمال کړای شي .

۲ – د متکلم او مخاطب متصل ضمایر په اسماؤ کې ګردان کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**نکره:** هغه اسم دی چې په نا معلوم شي دلالت کوي لکه: کتاب، عصفور، أخ، رسالة.

علامه د نکرې دا ده چې ( ال ) تعریف قبول کړي لکه: رجل: الرجل. عصفور: العصفور. کتاب: الکتاب. أخ: الأخُ.

معرفة: الرجل: الأخُ.

معرفه په اووه قسمه ده: ضمیر، علم، اسم اِشاره، اسم موصول، معرف په ( ال ) معرفې ته مضاف، د نداء پورې مقصوره نکره.

**نوي لغتونه:**

**د لوست میتودونه:** سوال او ځواب – د وه کسیز او په ډله ییزه توګه.

**د لوست مرستندویه توکي:**

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | – محترم ښوونکی له سلام، احوال پوښتنې، د ټولګي تنظیم او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر درس ارزونه کوي:<br>– څوک دغه سوال ته ځواب ویلی شي؟<br>– اَین کان البُستاني ؟ | |
| ۴۰ دقیقې | – محترم ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست څلورم تمرین په چوپتیا سره ولولي او بیا په فعل مضارع کې د(لَن او لَم )حرفونه داخل کړي البته د مثال څخه په استفادې سره خپله ښوونکی د تختې په سر کې یو مضارع فعل د (لَم او لَن ) سره لیکي.<br>دمثال په توګه – لَن یطیرَ البلبُلُ في الجوِ – لَم یطِرِ البُلبُلُ في الجوِّ.<br>او نوري جملې په زده کوونکو په تخته عملي حل کوي.<br>– ۱ – محترم ښوونکی د لوست پنځم تمرین دوه مثالونه زد کوونکو ته په تخته کار کوي او پاتې مثالونه زده کوونکي حل کوي چې ښوونکی ورسره مرسته کوي لکه: کتابي، کتابنا، کتابکَ، کتابکما، کتابُکم، کتابکنّ. | د څلورم تمرین حل:<br>لَن یسکنَ البلبلُ في الحدیقة.<br>لم یسکنِ البُلبُلُ في الحدیقةُ.<br>لَن یَعودَ البُستاني بعد الساعة.<br>لَن یسمعَ البُستاني تغریدَ البلبَل.<br>لم یسمع البُستاني تغرید البلبل.<br>لن یحِسَ البُستاني البلبل<br>لم یَحِس البُستاني البلبل.<br>د پنځم تمرین حل:<br>۳ – یومي – یومنا – یومکَ – یومک – یومکما – یومکم – یومکنَّ.<br>۴ – قفصي – قفصنا – قفصک – قفصکماَ – قفصکم – قفصکنَّ.<br>۵ – ساعتي – ساعتُنا – ساعتُکِ |

| – ساعتکما – ساعتُکم.<br>د شپږم تمرين حل:<br>۱ – يُغرِّدُ، ۲ – القفصُ، ۳ – حزيناً، ۴ – حراً.<br>د اووم تمرين حل:<br>۳ – اشتريت القفصَ.<br>۴ – سمعتُ تغريد البلبل ۵ – الحبسُ محزن.<br>۶ – الحرية سعادة.<br>۲ – الببغاءُ.<br>۳ – الديک، ۴ – الطيور.<br>الهدهدُ. | – ۲ – حديقتي، حديقتنا، حديقتکَ، حديقتکِ، حديقتکُما، حديقتکم، حديقتکن.<br>– محترم ښوونکی د لوست شپږم تمرين زده کوونکو ته په ټولګي کې عملي کار کوي تر څو يې په خپلو کتابچوکې حل او خالي ځايونه په مناسبو کلمو ډک کړي.<br>– محترم ښوونکی د لوست اووم تمرين داسي حل کوي اول دوه جملې د مثال په توګه پخپله په تخته ليکي او وروسته څلور تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي چې هر يو يوه کلمه په جمله کې استعمال کړي لکه:<br>– رايتُ البُستاني. ۲ – البلبلُ طير جميل.<br>– محترم ښوونکی د لوست اتم تمرين د حل لپاره زده کوونکي په مناسبو ډلو ويشي او دنده ورکوي چې په خپلو منځو کې د تمرين جملې په مناسبو کلمو سره پوره کړي او خپله ښوونکی يوه جمله دنمونې په ډول په تخته حل کوي لکه:<br>۱ – نُسمي الطائرَ الذي يُعطينا البَيضَ الدجاجةَ.<br>– محترم ښوونکی د لوست نهم تمرين زده کوونکو ته په تخته حل کوي: – صغير – کبير – صادق – کاذب – حرية – حبس – يوم – ليل.<br>– عادَ، ذهبَ– ماتَ – عاشَ – کثير – قليل – حزين – فرح.<br>– محترم ښوونکی د لوست لسم تمرين چې نوي کلمات دي زده کوونکو ته په تخته د معنا سره ليکي او په څو تنو زده کوونکو يې تکراروي. ارزونه:<br>۱ – څوک د: البُلبُلُ – کلمه په جمله کې استعمالولای شي.<br>۲ – څوک د التغريدُ – معنا ويلای شي؟<br>۳ – څوک د صغير د کلمې ضد ويلای شي؟<br>– محترم ښوونکی د لوست آخرى تمرين الواجب المنزلي زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکوي او يوه جمله د بيلګي په توګه زده کوونکو ته په تخته ليکي او هغوی سره مرسته کوي. | |
|---|---|---|